# ځیرک اقتصاد پوه او بریالی مدیر

**(د ولسمشر محمد اشرف غني تېر پينځه کلن حکومت ته يوه لنډه کتنه)**

ليکوال: عزيز احمد فضلي

## کتاب پېژندنه

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | ځیرک اقتصاد پوه او بریالی مدیر |
| لیکوال | : | عزیز احمد فضلي<br>0764732929 |
| ډیزاین چارې | : | صادق الله صادق/ 0782500916 |
| چاپ شمېر | : | ۱۰۰۰ |
| چاپ کال | : | ۱۳۹۹ل. کال / ۲۰۲۱م. کال |




## خپرندوی

**د نوي فکر ټولنه - کابل**

# ډالۍ

دا کتاب د خپل ګران تره شهید الحاج قاضي عیدمحمد نورذاد او ټولو هغه شهیدانو په یاد ډالۍ کوم، چې ددې هېواد ځخه د دفاع او د نظام د بقا لپاره یې خپل سرونه نذرانه کړل.

دده روح دې د ټولو شهیدانو سره ښاد وي.

د کتاب هر لوستونکي څخه مې هیله دا ده، چې زما تره او د هېواد سپېڅلي شهیدان په دعاوو کې هېر نه کړي.

ع.ا. فضلي

# مننه او کورودانی



ځوان او په علم مین مشر د کوچیانو چارو د انسجام لوی رییس او د نوي فکر ټولنې بنسټګر  استاد حبیب الرحمن څخه یوه نړۍ مننه، چې د دې کتاب د چاپولو په برخه کې یې لازمه همکاري او مرسته راسره وکړه.
استاد هغه څوک دی، چې ددې هېواد د پرمختګ او نظام د بقا لپاره یې تر بل هر چا زیاتې مادي او معنوي قربانۍ ورکړي، چې ددې کتاب چاپ یې یو وړه بېلګه ده.
زه بیا هم د زړه له کومې ترې مننه کوم.

**ع.ا. فضلي**

## د پیل خبرې

**اشرف غني د متحده ایالاتو ولسمشر نه وه چې په اونیزه رخصتۍ کې نیو مکزیکو ته ولاړ شي، هغه د تاجیکستان ولسمشر هم نه وه چې خپل ټول سیاسي مخالفان راچپه کړي او د ساعت تیرۍ په منظور خپل ځانګړي باغ کې، له ښکلو نجونو سره خندا او نڅا وکړي.**

**اشرف غني پوتین هم نه وه چې هره ورځ ۳تر۴ ساعتونو پورې په کرملین ماڼۍ کې یوازې ورزش او تفریح وکړي، هغه حتی د شمالي کوریا ولسمشر هم نه وه چې په اونۍ کې یوځل ښکار ته لاړ شي او خپلې درنې اوږې له روحي فشارونو سپکې کړې.**

**اشرف غني د نړۍ د یوه فاسد ترین نظام میراث دار و، د یوه دوه سري نظام لاربښود، د یوه وږي ملت رییس، د هغو سرتېرو اعلی سر قومندان چې هره شېبه یې سرونه شیندل کېدل، د هغه حکومت سیاست جوړونکی چې ګاونډیان یې حتی یوه ورځ ارامي هم پر ملت نه لوروله.**

**یو داسې اعلی سرقومندان چې څو جنګي محاذونه له طالب، القاعده او داعش نه واخله تر جندالله،حزب اسلامي ازبکستان او نور ټول غیر مسوول وسلوال د هغه پر وړاندې په ټول قوت جنګېدل.**

**غني دداسې یوه سیاسي نظام میراث دار و چې پوره ۱۳ کاله یې کارکوونکی په واسطه، زور او پیسو ددې لپاره مقرر شوي وو چې خپل ولس ته زیان او خساره واړوي.**

**ددداسې یوه حکومت رییس چې هیڅ کس په کې د باور وړ نه وو څکه هېڅ کس پر خپلو حقونو قانع نه وو، غني حتی مجبور و چې په یوه کال کې د تدارکاتو ۷۰ ناستې رهبري کړي، څو ۲ میلیارده افغانۍ بچت شي او د جګړې**

**د قربانیانو د زخمونو لپاره پرې مرهم او پټۍ وپېرل شي، اشرف غني د هغه پاشل شوي سیاسي نظام رهبر و چې له حکومته بهر پښتنو کافر باله، له حکومته بهر هزاره ګانو په ولسمشرۍ نه مانه، له حکومته بهر تاجکانو فاشیست او قوم ګرا باله، ازبکانو ترې د لازیات سهم غوښتنه کوله، پشه یانو، نورستانیانو او ترکمنانو ورڅخه د ځو ځو وزارتونو، سفارتونو او معینتونو غوښتنه کوله.**

**اشرف غني دداسې ولس رییس جمهور و که یې په سوله یې فکر ونه کړ په بې پروایي تورنېده،که له یوه پیاوړي جنګي حزب سره یې سوله کوله نو قوم ګرا او نکتایي دار طالب بلل کېده.**

**دداسې یوه حکومت په راس کې وه چې ډېر کم مامورین یې د پاکستان د منزوي کولو له سیاست څخه خبر و او پرې پوهېدل اما زیاتره مامورینو یې هغه وړه لفظی اشتباه هیڅکله نه هېروله چې د خداي ج د پیغمبر د لمسي پر ځای یې د خدای ج لمسی ویلی و.**

**غني د حکومت د نورو کارکوونکو په شان نه و، سهار ۵ بجې د خپل کار په دفتر کې حاظر و د شپې تر ۱۱ او کله ۱۲ بجو پورې به یې کار کاوه، د ولسمشرۍ ماڼې زیاتره کارمندان له دې کبله چې ولسمشر غني ترې د وطن لپاره شدید کار غوښت ترې په تنګ راغلي وو، اما غني معتقد و چې باید تر دې هم زیات کار وشي.**

**هر سهار یې د اعلی سر قومندانۍ جلسه رهبري کوله، له ۳۴ ولایتونو څخه یې تازه راپورونه غوښتل او د هرې ورځې په اوږدو کې یې دا راپورونه تحلیلول، د هغه په خپله وینا تر ټولو ناوړه شیبه ورته هغه وه چې په دغو راپورونو کې به د سرتیرو له مرګ ژوبلې خبرېده.**

اشرف غني د هغه هېواد ولسمشر و او دی چې که يې د رهبري پلاوي كوم غړي د اجراييه رييس په څير شيک پوش وي نو هم د نيوكې وړ دی او که كوم بل غړی دده په څير خوارجامه وي نو هم د نيوكې وړ دی.

غني د څو لسيزو فكر، مطالعې او ليكوالۍ وروسته مجبور شو، چې د افغانستان د ټولو ستونزو حل ته په يوه ځل لاس ور اوږد كړي، هغه د همدې مجبوريت پر بنسټ پر ټولو دولتي ځانگو د خپلو لرليدونو د تحميلولو پيل وكړ ، هغه تر سلو زيات هغه جنرالان وشړل چې د نظامي قوتونو په قراردادونو كې يې غلا او درغلي كوله.

غني له خپلو نظامي قومندانانو سره هره ورځ له يوې زير زميني نه په منظم ډول ويډيو كنفرانسونه كول او شپه په شپه يې د ټول هېواد له حالته ځان خبراوه.

غني د افغانستان په حكومت كې نه زوی درلود او نه ورور چې د زرو غلا يې كړې وی، هغه تر يوې افغانۍ پورې هر څه چې لرل راميدان ته يې كړل او ويې ويل چې زه او ميرمن مې دومره شتمني لرو د غني تر لاس لاندې مامورينو كې هيڅ يو داسې نه وه چې له افغانستان څخه بهر يې، د كورونو او قصرونو قبالې اخيستې وي او يا يې سوداگريز شركتونه جوړ كړي وي.

له دې ټولو سره سره بيا هم د گاونډيو هېوادونو،بعضو جهادي رهبرانو او سياسيونو لخوا كوښښ روان و چې د ولسمشر پر سپينه لمن تور داغ ولگېږي، چې دا چاره لاهم روانه ده.

په درنښت

عزيز احمد فضلي

# لیکلړ

موضوع                                                                 مخ

سریزه ............................................................................................1

## لومړی څپرکی

د ۱۳۹۳هـ. ش. کال د جمهوري ریاست ټولټاکنې او د ملي وحدت حکومت منځته راتګ ............................................................................................5
ولسمشر محمد اشرف غني پېژندنه ..............................................7
ولسمشر د امان الله خان د نیمګړي فصل تکمیلوونکی د افغانستان په تاریخ کې نیمګړی څپرکی څه معنی؟ ............................................12
د اماني اصلاحاتي څپرکي د نیمګړي پاتې کېدو عوامل ...............17
د ولسمشر د حکومت پیل..........................................................18

## دویم څپرکی

د ولسمشر کورنی سیاست ..........................................................28
د ولسمشر غني په دوره کې امنیتي لاسته راوړنې او امنیتي حالت ..................30
د جمهور رییس غني ولایتي سفرونه، اهداف، پایلې او لاسته راوړنې ...............33
د جمهور رییس د سفرونو موخې او عوامل ..................................35
د ولایتي سفرونو پایلې او لاسته راوړنې ......................................37
د ولسمشر سیاسي اپوزیسیونPolitical opposition ................................39
د اپوزیسون لخوا په ولسمشر او د نظام پر ځینو کلیدي اشخاصو بې اساسه تورونه 44
د ولسمشر پر شخصي حریم بې اساسه تورونه ..............................46

## درېیم څپرکی

د افغانستان معاصر بهرنی سیاست ........................................................ 49
د ولسمشر بهرنی سیاست ........................................................ 55
د بهرني سیاست لاسته راوړنې ........................................................ 57
د ګاونډیو او نورو هیوادونو سره د اړیکو د پراخولو لپاره د ولسمشر غني ځینې مهم سفرونه ........................................................ 59
ملي وحدت حکومت او د کابل اسلام اباد اړیکي: ........................................................ 59
روسیه او افغانستان: ........................................................ 61
افغانستان او چین ستراتیژیکه ملګرتیا او پر سیمه یې اغېزې: ........................................................ 64
د مرکزي اسیا هیوادونو ته سفرونه ........................................................ 65
ترکمنستان: ........................................................ 66
ازبکستان:........................................................ 67
قزاقستان: ........................................................ 69
د قرغېزستان سفر: ........................................................ 71
سعودي ته سفر:........................................................ 72
د افغانستان او ترکیې اړیکې:........................................................ 73
اندونیزیا: ........................................................ 75
د جاپان سره اړیکې: ........................................................ 76
د امریکا سفر:........................................................ 77
اروپا ته سفر ........................................................ 82

## څلورم څپرکی

د هیـواد اقتصادي وضعیت ........................................................ 88
اقتصادي وده ........................................................ 90
د افغانی ارزښت........................................................ 90

بې کاري......................................................................... 91
صادرات او واردات ............................................................ 91
هوايي دهليزونه ................................................................ 92
خصوصي سکتور او له کورنيو توليداتو ملاتړ ............................. 93
د خصوصي سکتور وده ....................................................... 94
د نړيوالو مرستو جلب ......................................................... 95
کرنه او مالداري.................................................................. 96
اوبه ................................................................................ 97
د ۲۰۲۰ ميلادي کال تر لومړيو پورې د برېښنا بندونه او د اوبو مديريت ............ 98
ترانزيټ............................................................................ 99
د اسيا په څلور لارې د افغانستان بدلول .................................100
کاسا زر پروژه .................................................................100
د ټاپي پروژه ...................................................................104
د افغانستان لپاره د ټاپي اقتصادي گټې .................................104
سيمه ييز اغېز ..................................................................105
د ټاپي ملاتړي هيوادونه........................................................106
د چابهار بندر ...................................................................107
د ټاپ د برېښنا پروژه .........................................................111
وارداتي او لمريزه برېښنا .......................................................111

## پينځم څپرکی

په کلتوري او علمي برخه کې د ولسمشر لاسته راوړنې ...............................113
ښوونه روزنه او لوړې زده کړې ..........................................................113
د ملي وحدت حکومت او د ملي ورځو نمانځنه .....................................118
د ملي وحدت حکومت او د تاريخي ابداتو بيارغونه ..............................122
د افغانستان جمهوري رياست (ارگ):................................................122

دارالامان ماڼۍ: .................................................. 124
د پل خشتي جومات: .................................................. 128
د کابل لرغونی بالاحصار: .................................................. 129
د شاه دوشمشېره جومات: .................................................. 130
د جام څلی: .................................................. 131
د هرات جامع جومات: .................................................. 132

## شپږم څپرکی

په افغانستان کې اداري فساد .................................................. 134
د اداري فساد پرضد د ملي يووالي حکومت مبارزه .................................................. 135
حکومت ولې په خپله مبارزه کې ناکام شو؟ .................................................. 138
د غصب په وړاندې مبارزه .................................................. 139
ښه حکومتولۍ .................................................. 142
د ښې حکومتولۍ په برخه کې د ولسمـشر غني لاسته راوړنې .................................................. 142
ملي هويت او د بريښنايي تذکرو د ويش پيل .................................................. 145
ځوانه اداره .................................................. 146

## اووم څپرکی

د سولې په چارو کې د ولسمشر اشرف غني لاسته راوړنې .................................................. 149
د کابل پروسه .................................................. 152
د سولې مشورتي لويه جرگه .................................................. 156
د جرگې د غړو او رييس انتخاب: .................................................. 156
د جرگې تالار دننه وضعيت: .................................................. 157
د بحث لپاره پوښتنې:. .................................................. 157
پرېکړه ليک او د سولې په پروسه يې اغيز: .................................................. 160
له طالبانو سره د سولې لپاره د ملي وحدت حکومت لاسته راوړنې .................................................. 161

د سولې په اړه د طالبانو دريځ ........................................................162
د افغانستان د سولې لپاره د امريکا متحده ايالاتو د ځانګړي استازي ټاکل.........163
په قطر کې د طالبانو او امريکايانو ترمنځ د سولې مذاکرات .........................166
افغان سوله د افغان حکومت، امريکا او سيمې د همغږۍ اړتيا..........................168
د امريکا او طالبانو ترمنځ د هوکړې مهم ټکي ..............................................174

اتم څپرکی

ټاکنيزي ډلې او د ١٣٩٨ کال ولسمشريزو ټاکنو برخليک ............................175
د ١٣٩٨ ه ش کال ټاکنيزې ډلې........................................................177
په افغانستان کې د ١٣٩٨ه. ش کال د ولسمشـريزو ټاکنو ١٨ ټاکنيزې ډلې .........178
ځواکمنې ټاکنيزې ډلې ...............................................................179
ولسمشريزې ټاکنې.....................................................................182
د ټاکنو برخليک.........................................................................182
دوستم ته د مارشالي ورکول د ولسمشر مجبوريت که خيانت ........................186
اخځليکونه ..............................................................................187

## سريزه

الحمدالله رب العالمين و العاقبت اللمتقين والصلوت والسلام علی رسوله محمد صلی الله عليه وسلم و علی آله و اصحابه اجمعين.

ولسمشر غني د هېواد او اوسني نړۍ په سياست، اقتصاد او ډيپلوماسي کې داسې وتلې او پېژندل شوې وړ څېره ده چې نن سبا د مطبوعاتو په سر کې قرار لري. د هر با احساسه ځوان او انسان په زړه کې يې ځای نيولی دي داسې يو انسان دی چې ټوله نړۍ په ځانګړي ډول اسلامي هېوادونه پرې حساب کوي، د داسې ستر شخصيت پر کړنو لېکنه له خپل شان سره مناسبه نه ګڼم، خو خپل وطني او افغاني احساس دې ته اړ کړم چې په دې ستر نړيوال شخصيت يو څه وليکم څو نورو ليکوالانو ته لار پرانيزم.

د رهبر د کړنو ارزول د نړۍ په مختلفو هېوادونو کې معمول دي چې زموږ هېواد کې دا دود په نشت حساب دی، نو ما هم دې تشې ته په کتو د ولسمشر غني د لومړۍ پنځه کلنې دورې کړنو څېړنه او مطالعه کړې، په لنډو کې يې د کتاب په بڼه ولس ته وړاندې کوم. په کتاب کې ما هڅه کړې چې د ولسمشر غني د پنځه کلن حکومت، بهرني سياست،کورني سياست، سوله، ښه حکومتولی، ځوانه اداره او اقتصادي حالت، کاري فرصتونو، بې کاري او علمي وضعيت، د قانون حاکميت، انکشاف او پرمختګونه وڅېړل شي او ملت ته وړاندې شي.

موخه مې داده چې ولس او ځوانان د ولسمشر غني په اړه قضاوتونه له هوايي شعارونو راوباسي او د ترسره شويو کارونو له مخې يې و ارزوي. ما چې څه ليدلي او او اورېدلي هغه مې لنډ راخيستي، ولسمشر غني داسې کارونه د هېواد لپاره په دې پنځو کلنو کې کړي چې ډېر داسې کتابونه به پرې وليکل شي.

زه د سياسي علومو د يوه زده کړيال په توګه دا نظر او اند لرم چې هر څوک د حق او عدالت د لارې پلوی خپل هېواد او ملت ته د زړه څخه کار کوي، هغه دې په ژوندوني وستايل شي او راتلوونکي بشري نسل ته دې د هغه کړنې د يو ژوندي تاريخ په حيث پاتې شې.

ښايي ولسمشر غني به د چا له نظره ښه وي، د چا له نظره به ښه نه وي څوک به يې مثبتو نقطو ته ګوري او څوک به يې منفي نقطو ته ګوري، خو مسلمان انسان بايد د تل لپاره ښه نظر ولري زه ولسمشر اشرف غني بريالي ځيره ګڼم او کردار يې د ټولې نړي لپاره د يو سمبول ښه لري.
دی داسې يو مستقل ولسمشر دی چې تر اوسه د کوم ګوند عضويت نه لري او نه يې هم د ملت په وينو لاسونه سره دي، داسې سياستمدار انسان چې هم يې هېواد رهبري کړی هم يې د بېوزلو هېوادونو لکه فلسطين سره مرسته کړې او هم د ګاونډيو هېوادونو او داخلي پردي پالو سياستوالو سره تر خپل وسه مبارزه کړې چې زموږ په شان حالت کې هر هېواد دغه شان لارښود ته اړتيا لري.

هېواد ورته له هر څه مخکې په لومړيتوب کې دی، دا هغه مهمه نقطه ده چې ولسمشر غني يې لري د ولسمشر غني محبوبيت په هېواد سيمه او نړۍ کې ورځ تر بلې د ډېرېدو په حالت کې دي.

**انسان نظر خپل فطرت ته نیمګړتیاوې هم لري باید معجزې هیله ترې ونه شي، هغه باید اصلاح شي یو شی چې زه د هغه یادونه وکړم ولسمشر غني د شهید سردار داوود خان، شهید ډاکتر نجیب الله او غازي امان الله خان په څېر په هر څه کې خپله مفکوره او نظر لري خو په میدان کې ځان یوازې ویني.**

**په هر صورت په دې کتاب کې مې هڅه کړې چې موضوعات په روانه ژبه، له قوي منابعو څخه په استفادې او په پوره بې طرفۍ سره افاده کړم، په دې کتاب کې مې د معلوماتو په ټولولو کې د انټرنیټي سایټونو سربیره د کتابتوني روش او تګلارې څخه استفاده کړې ده، او هم مې په ځینو موضوعاتو کې د هېواد له له پیژندل شویو سیاسینو، اقتصاد پوهانو، مورخینو، د نظر خاوندانو او لیکوالانو سره مرکې کړې دي.**

**له لوی خدای (ج) څخه ډېر شکر ګزاریم چې دا کتاب مې بشپړ کړ، له ټولو هغو کسانو څخه چې په یو نه یو ډول یې له ماسره مرسته کړې ده مننه کوم او همدارنګه له ډېرو درنو او قدرمنو مشرانو ( د کوچیانو چارو د انسجام د لوي ریاست عمومي رییس او د نوي فکر ټولنې مشر استاد حبیب الرحمن، د پکتیا پوهنتون رییس پوهندوي دوکتور سید ولي جلالزي، د پکتیا پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو د پوهنځۍ رییس پوهنمل نورانور فاروقي، د پکتیا پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځي د دیپلوماسي څانګې امر پوهنیار بختیار ګل احمدزي، د پکتیا پوهنتون د ژورنالیزم پوهنځي استاد پوهنیار خالداحمد حبیب، په پارلماني چارو کې ددولت وزیر ښاغلی ګل بادشاه مجیدي، د پکتیا والي محمد حلیم فدایي، د ځوانانو د پارلمان پخواني رییس او لیکوال**

**اغامحمد قريشي، د ولسمشر مرستيال وياند دوا خان مينه پال، په فرهنګي چارو کې د ولسمشر سلاکار شاه حسين مرتضوي، په قومي چارو کې د ولسمشر سلاکار الحاج جمعه خان اڅکزی او اديب اسماعيل تسل هر يوه څخه ځانګړې مننه کوم.**

**دا يو څرګند حقيقت دی چې دا کتاب به له تېروتنو او نيمګړتياو څخه خالي نه وي، نو ځکه د ټولو نظر خاوندانو او ګرانو لوستونکو څخه هيله لرم چې زما نيمګړتياوې راته په ګوته کړي څو په راتلونکي کې اصلاح شي.**

**خدای دې وکړي چې دا کتاب ستاسو لپاره ګټور تمام شي او زما لپاره د الله جل جلاله د رضا سبب شي.**

**په درناوي**

**عزيزاحمد فضلي**

# لومړی څپرکی

## د ۱۳۹۳هـ. ش. کال د جمهوري رياست ټولټاکنې او د ملي وحدت حکومت منځته راتگ

په ۱۳۹۳ ه ش کال کې د هېواد د زعامت د ټاکلو لپاره افغانستان د ټاکنو دريمه ډيموکراتيکه دوره وازمايله، په دې دوره کې ۲۷ ټاکنيزو ټيمونو اشتراک کړی و چې له جملې يې دري قوي ټيمونه: محمد اشرف غني احمدزي د لومړي مرستيال عبدالرشيد دوستم او دوهم مرستيال سرور دانش په ملتيا چې د نويو او ديموکراتيکو سياسي گوندونو، ولس او ځوانانو له پراخ ملاتړ څخه برخمن و، عبدالله عبدالله چې د انجينر محمد خان په لومړی مرستيالی او د محمد محقق په دوهمې مرستيالی سره د پخواني جهادي گوندونو او اشخاصو له ملاتړ څخه برخمن و، زلمي رسول چې د احمدضياء مسعود او حبيبه سرابي په مرستيالی د ولسمشر حامد کرزي او حاکم حکومت له پراخ او هر اړخيز ملاتړ څخه برخمن و، د لوبې پايلو ته ووتل، چې له ډېرو امنيتی، سياسي او اقتصادي گواښونو سره سره د ۱۳۹۳ ه ش کال ټاکنې د حمل د مياشتې په ١٦مه نېټه ترسره شوې، چې ټاکنو په لومړي پړاو کې بريالي نه درلود، نو دوهم پړاو ته ولاړې چې په دوهم پړاو کې زلمي رسول د ډاکتر عبدالله عبدالله په گټه له خپلې نوماندي تېر شو او ټاکنې د تحول او تداوم او

**اصلاحاتو او همپالنې ټیمونو ترمنځ د همدې کال د جوزا د میاشتې په ۲۴مه نیټه له ډېرو لفظي شخړو، سمتي، قومي، ژبني رقابتنو، بې اساسو تورنو او نیوکو وروسته ترسره شوې چې بلاخره محمد اشرف غني ددې دورې د ټاکنو ګټونکی اعلان شو.**

**خو ډاکتر عبدالله دا پایلې وننګولې، د تحول او تداوم پر ټیم او د ټاکنو پر کمیسون یې ددرغلیو تورونه پورې کړل، هېواد له ډېرو خطرناکو سیاسي، امنیتي او ټولنیزو پدیدو سره لاس او ګریوان شو چې ورځ تر بلې دا وضعیت بحراني کېده چې بلاخره د هېواد د وضعیت د کنټرول د پیښیدونکو سیاسي، قومي او سمتي جګړو د مخنیوي لپاره ولسمشر محمد اشرف غني ډاکتر عبدالله عبدالله ته د امتیازاتو په منلو سره هېواد له ده کړکېچ څخه وژغوره چې دا هېواد د ولسمشر ددې قرباني مدیون او قرضدار ده.**

**او په دې سره ولسمشر له خپل سیال ډاکتر عبدالله عبدالله سره د سنبلې د میاشتې په ۳۰مه نیټه په ارګ کې، د امریکا د بهرنیو چارو وزیر (جان کیري) او د هېواد سیاسي رهبرانو په حضور د ملي وحدت حکومت د جوړېدو تفاهمنامه لاسلیک کړه چې ددې تفاهمنامې له مخې محمد اشرف غني د هېواد ولسمشر او ډاکتر عبدالله عبدالله د هېواد د اجراییه رییس په توګه وټاکل شو.**

# ولسمشر محمد اشرف غني پېژندنه

محمد اشرف غني احمدزی په (۱۳۲۸ هـ ش) کال په یوې دینداري او مخورې کورنۍ کې وزیږېد. د خپل ماشومتوب لومړنۍ دوره یې په لوگر ولایت کې تېره کړه. دی د کابل له حبیبیې لېسې څخه فارغ شوی دی. پلار یې په شاهي دوره کې په بېلابېلو لوړو دولتي پوستونو کې دنده ترسره کړې ده.

ډاکټر محمد اشرف غني احمدزي د ځوانۍ په لومړیو کې د زده کړو لپاره لبنان ته سفر وکړ او د بیروت په امریکایي پوهنتون کې شامل شو.

په (۱۳۵۲) کال کې یې په دغه پوهنتون کې خپلې زده کړې بشپړې کړې. په (۱۳۵۳) کال کې افغانستان ته راستون او په کابل پوهنتون کې د ټولنیزو علومو په څانگه کې د انسان پوهنې استاد شو. په (۱۳۵٦ هـ ش) کال کې د بورس په اخیستو سره د امریکا د کولمبیا په پوهنتون کې شامل شو.

ډاکټر محمد اشرف غني احمدزی د بیروت په امریکایي پوهنتون کې په لوړو نومرو، د سیاسي علومو په برخه کې لیسانس او ماسټري اخیستې ده.

دوهمه ماسټري یې د نړیوالو اړیکو په برخه کې د امریکا له کولمبیا پوهنتون څخه تر لاسه کړې او وروسته یې په یاد پوهنتون کې د وگړپوهنې په برخه کې دوکتورا ترلاسه کړې ده.

محمد اشرف غني احمدزی په ۲۰۰۷ او ۲۰۰۸میلادي کلونو کې د امریکا له سکرانټن او د کاناډا له گلف پوهنتونونو څخه دوې افتخاري دوکتوراوې هم

**تر لاسه کړې دي. دغه راز د پاکستان په کراچۍ او لاهور ښارونو کې يې د يوه کال لپاره اسلامي زده کړې هم کړې دي.**

**محمد اشرف غني احمدزی له هېواد څخه بهر د ډنمارک په اورهوس، د امريکا په بيکلي او جانز هاپکنز پوهنتونونو کې استاد و.**

**د شوروي اتحاد د تېري پر مهال يې د کورنۍ ډېر غړي زندانيان شول او له همدې امله اشرف غني په امريکا کې د پاتې کېدو پريکړه وکړه او د خپلې دوکتورا تحصيلاتو ته يې دوام ورکړ، د خپلې دوکتورا رساله (تيزس) يې د افغانستان د معاصر تاريخ په باب وليکه.**

**ډاکټر محمد اشرف غني احمدزي ١٣٦٢-١٣٧٠ کلونو پورې په کاليفورنيا او جانز هاپکنز پوهنتونونو کې د استادۍ دنده ترسره کړه، د يادو پوهنتونونو ترڅنګ يې د نړۍ په نورو ډېرو معتبرو پوهنتونونو لکه بکلي او اروس کې هم د استادۍ دنده ترسره کړې ده.**

**ډاکټر محمد اشرف غني احمدزی په ١٣٧٠ هـ ش کال کې په نړيوال بانک کې د لوی سلاکار په توګه وګمارل شو، يوولس کاله يې په نړيوال بانک کې دنده ترسره کړه. ده خپل کار په ختيځه اسيا کې د پروژو په طرح کولو پېل او وروسته يې د نړيوال بانک لپاره سياسي ستراتيژي ترتيب کړه. اشرف غني پر ١٣٧٥ کال په نړۍ کې د ادارو او دولتي بنسټونو په هکله يو لړ بنسټيز اصلاحات پيشنهاد کړل. نوموړي په چين، هندوستان او روسيه کې د لويو پروژو او اقتصادي اصلاحاتو د پلي کولو لپاره پنځه کاله اغېزمن کار وکړ. ډاکټر محمد اشرف غني احمدزی په نړيوال بانک کې د کار پر مهال د**

هارورډ اېنسيډ او سټنفورډ تجارتي پوهنتونونو لخوا د مشرتابه (رهبريت) تر عنوان لاندې جوړ شوي روزنيز پروګرامونه تعقيب کړل.

ډاکټر محمد اشرف غني احمدزی د طالبانو د نظام له ړنګېدو وروسته افغانستان ته راغی او د ملګرو ملتو د ځانګړي استازي د لوی سلاکار په توګه يې کار پيل کړ. نوموړي د بن پروسې په عملي کولو کار وکړ او په لنډ مهاله اداره کې يې د ادارې مشر د سلاکار په توګه دنده ترسره کړه. د دواړو، (بېړنۍ او اساسي قانون) د لويو جرګو په جوړولو کې يې بنسټيز رول درلود.

ډاکټر محمد اشرف غني احمدزی په ۲۰۰۲ميلادي کال کې د ماليې وزير په توګه وټاکل شو، چې په دې برخه کې يې يو لړ ارزښتناک کارونه وکړل. په مالي برخه کې له بنسټيزو اصلاحاتو او نوښتونو سره يې د هېواد د مالي سياست، شفافيت او حساب ورکونې پروسه عملاً رامنځته کړه او په درې اونيو کې يې د دولت عوايد مرکزي کړل .نوي بانک نوټونه يې چاپ او بازار ته يې وړاندې کړل. خزانه کمپيوټرايز شوه، د خزانې لپاره واحد سيستم دود شو، د ګمرکاتو او تعرفې سيستم اصلاح شو.

ډاکټر محمد اشرف غني احمدزي د خپل باور او تجربو له برکته ډېرې نړيوالې مرستې جلب او جذب کړې ډاکټر محمد اشرف غني احمدزي ته د هغه د سترو خدمتونو له امله د افغانستان د جمهور ريس حامد کرزي له خوا، تر ټولو اعلي مډال د سيد جمال الدين افغاني افتخاري مډال ورکړل شو. په ۱۳۸۲ کال کې د اسيايي هېوادونو ترمنځ د غوره ماليې وزير په توګه هم وپېژندل شو.

په ۱۳۸۳ کال کې د برلين په کنفرانس کې د ډاکټر احمدزي د افغانستان د خلکو د راتلونکي د خوندي کولو په موخه اوه کلن پروګرام وړاندې کړ، چې غوره طرحه وپېژندل شوه. دغه راز د ډاکټر محمد اشرف غني احمدزي په ابتکار د ملي پيوستون پروګرام رامنځته شو.

په ۱۳۸۳ کال کې د ښاغلي کرزي تر انتخابېدو وروسته، ډاکټر محمد اشرف غني احمدزي په کابينه کې له ګډون کولو ډډه وکړه او د کابل پوهنتون د رياست دنده يې ومنله. هلته يې د دولتي اغېزمنتيا انسټيټيوټ بنسټ کښېښود. نوموړي په نورو سلګونو علمي مقالو او اثارو سربېره د اسلام د مبين دين نفاذ، د ښځو حقوق او ټولنيز عدالت، په قبايلي ټولنه کې د اسلام او دولت جوړول او د اسلامي شريعت په محکمه کې د شخړو هواري په اسلامي علومو کې د ډاکټر محمد اشرف غني احمدزي ځيړنيز اثار او ليکنې دي.

د افغانستان معاصر ادبيات، د افغانستان څلورسوه کلن تاريخ، ناکام دولتونه او د هغوی د کاميابۍ تګلاره او د عادلانه نظام لاره هم د ډاکټر محمد اشرف غني احمدزي له څېړنيزو اثارو څخه دي.

له ډاکټرمحمد اشرف غني احمدزي څخه د حامدکرزي په مشرۍ، د افغانستان حکومت په ډېرو مسايلو کې مشوره اخيسته چې د کابل د کنفرانس د جوړېدو په شمول يې د زياترو ملي پروګرامونو په ترسره کولو کې فعاله ونډه لرله.

دغه راز محمد اشرف غني احمدزي په ۲۰۱۰ميلادي کال کې له نړيوالو پوځونو څخه افغانانو ته، د امنيتي انتقال د بهير مسووليت هم په غاړه درلود، چې د هېواد ۳۴ ولايتونو ته په سفرونو سره او د پراخو امنيتي تجربو په ترلاسه کولو سره په برياليتوب دغه دنده هم ترسره کړه .

**ډاکتر محمد اشرف غني احمدزي په تېرو دوارو ټاکنو کې ځان د هېواد جمهوري ریاست ته کاندید کړی و.**

**ډاکتر محمد اشرف غني احمدزی د ۱۳۹۳ هـ ش کال د انتخاباتو د دویم پړاو له ترسره کېدو وروسته د افغانستان د منتخب جمهور رییس په توگه وټاکل شو او د همدغه کال د تلې د مياشتې په اوومه نيټه يې، د ارگ د سلام خانې په ماڼۍ کې د جمهوري رياست د دندې لپاره د افغانستان د قاضي القضات په وړاندې لوړه ترسره کړه او د افغانستان د منتخب جمهور رييس په توگه يې خپله دنده پیل کړه.**[1]

[1] : http://president.gov.af/.

## ولسمشر د امان الله خـان د نیمگـړي فصـل تکمیلـوونکی د افغانستان په تاریخ کې نیمگړی ځپرکی څه معنی؟

د امیر غازي امان الله خان له لوري د هېواد د خپلواکۍ د بېرته ترلاسه کولو تر اعلان وروسته، افغانستان د پرمختگ او اصلاحاتو یوه نوي بهیر ته ورداخل شو. دغه بهیر ډېر ښه پیل شو، خو تر منزله ونه رسېد. د ازادۍ دغه یوه پېړۍ مزل له گڼو تاریخي او سیاسي تحولاتو سره مل دی، چې ترې د نوي نسل خبرول اړین دي.

په تېر د نوي نسل اگاه کېدل او په تېره یوه پېړۍ کې د خوداگاه او ناخوداگاه تاریخي کتمان په رازونو پوهېدل ایجابوي، چې د افغانستان په تاریخي نیمگړي ځپرکي هر اړخیز او تحلیلي بحثونه وشي.

د امیر غازي امان الله خان پیل شوي اصلاحات او د ماډرن افغانستان د هڅو بشپړولو لپاره گڼو واکمنانو خپلې هڅې وکړې، خو د گڼو ستونزو له وجې یو یې هم د پایداره ثبات په ټینگښت ونه توانېدل.

زه غواړم چې دلته ددې تاریخي ځپرکي پیل، ماهیت او د نیمگړي پاتې کېدو په بهیر بحث وکړم او نوی نسل وپوهوم چې د افغانستان په تاریخ کې نیمگړی ځپرکی څه معنی لري؟

امیر غازي امان الله خان په ۱۳۰۵ کال کې د نظامنامو تر خپرولو وروسته متوجه شو چې د افغانستان د پرمختگ لپاره ټاکل شوې تگلاره وسایلو او

سامان الاتو ته هم اړتيا لري، نو د وزيرانو شورا او د دولتي شورا د رياست پر مهال يې پر دې موضوعاتو بحث وکړ، چې د رغاونې، پوهنې، مطبوعاتو او مخابراتو په برخو کې عصري وسايلو او تجهيزاتو ته اړتيا شته، خو دا چې هغه مهال يې په افغانستان کې د توليد امکانات نه وو، نو بايد وارد شوي وای.

شاه اروپايي هېوادونو ته د سفر پر مهال دغه وسايل او تجهيزات له نيږدې ليدلي وو، نو پرېکړه وشوه چې له اروپايي هېوادونو دې وپېرل شي. ددې کار لپاره يو تخنيکي پلاوی وگمارل شو او اروپا ته واستول شو.

هماغه و چې د افغانستان د عصري کولو لپاره د امير هڅو او د اصلاحاتو بهير عملي بڼه خپله کړه او اروپايي هېوادونو ته د شاه او افغان پلاويو سفرونو له دې هېوادونو سره د افغانستان اړيکو ته نوې دروازه پرانيسته.

د شاه ستر سلاکار او همکار محمود طرزي ټول دغه اصلاحات ډلبندي کړل او وروسته يې له شاه سره، د هغه په عملي کولو کې بېسارې مرسته وکړه. ځينو دغو اصلاحاتو ته په لنډيز اشاره کوو چې خلکو ته د نيمگړي څېرکي ماهيت ښه روښانه شي.

په قانون کې اصلاحات: په قانوني اصلاحاتو کې د غازي امان الله خان لومړنی کار دا و چې د واک سرچينه يې له مطلقيت مشروطيت ته واړوله. هغه د واک د ترلاسه کولو او واک ته د مشروعيت ښنلو په سرچينه کې اصلاحات راوستل او د نظامنامې په تصويب سره يې د دولت واکونه او مسووليتونه د قانون پر بنسټ وټاکل شول. لويه جرگه د تصميم نيونې لويه مرجع وه، نو شاه په ځينو مواردو کې لويه جرگه په مشورتي بنسټ بدله کړه او د سياسي پوړ يو ځايوالی او جلاوالی يې په همدغو جرگو وکړ.

**د افغانستان لومړنی اساسي قانون د ۱۹۲۳ ز کال د فبروري په ۲۹ د جلال‌اباد په لویه جرګه کې د ملت د ۸۷۲ ګډونوالو له لوري تصویب شو، چې وروسته بیا د پغمان په لویه جرګه کې تایید شو. هغه قوانین چې وړاندې تدوین شوي وو، له اساسي قانون سره همغږي شول او په ګڼو نورو برخو کې د قوانینو جوړول چټک شول.**

**په اداري تشکیلاتو کې اصلاحات: د افغانستان اداري تشکیلات په قانوني توګه تنظیم شول. د اداري مراتبو سلسله له کلي تر علاقه‌دارۍ، لوی حکومت، اعلی حکومت او نایب الحکومه پورې تعریف او د ټولو ادارو او مسوولینو دندې مشخصې او نظامنامه کې تنظیم شوې. په دې برخه کې د کندهار ولایت د وضعیت بررسي او وروسته یې د کتاب په بڼه راپور خپرولو ته هم اشاره کولی شو.**

**اقتصادي او مالي اصلاحات: په اقتصادي برخه کې اصلاحات د صنایعو له انکشاف څخه پیل شول او افغاني محصولات بهرنیو مارکېټونو ته ورسېدل. په عمراني برخه کې نوي ښارونه جوړ شول، کابل ښار څو برابره پراخ شو، د کابل او ولایتونو ترمنځ سړکونه جوړ شول او لویې لارې پرانیستل شوې.**

**د کابل او ولایتونو ترمنځ د ټلیفون او ټلګراف لیکې پرانیستل شوې. له یوې فرانسوۍ کمپنۍ سره قرارداد وشو چې کابل له سویل او شمال سره د رېل پټلۍ په وسیله ونښلېږي.**

**شاه د افغانستان مالي نظام په بنسټیز ډول بدل کړ او هغه یې د اصولو او قواعدو تابع کړ. په ټوله اماني دوره کې د لګښتونو بودجه له عوایدو لږه وه، یا په بله وینا د بودجې کسر نه و. په داسې حال کې چې له امیر عبدالرحمن**

خان او امير حبيب الله خان سره د انګلستان کېدونکې مالي مرستې د ځوان پاچا په وخت کې بندې شوې وې. د سرو زرو او نقرې د چور او چپاول مخنيوي لپاره کاغذي بانک‌نوټونه مروج شول.

فرهنګي اصلاحات او د بيان ازادي: په دې دوره کې فرهنګي تنوع نوې ساه واخيسته. مطبوعات ازاد شول او هر چا حق وموند، چې خپل نظر څرګند کړي. د (سراج الاخبار) پر ځای (امان افغان) خپور شو، چې لومړنۍ ګڼه يې د ۱۹۱۹ ز کال د اپريل په ۱۲ د عبدالهادي داوي په مديريت خپره شوه. په دې خپرونه کې د ځوان دولت غوښتنې او کارکړنې خپرېدې. دې خپرونې په ګڼو نورو برخو کې په تحولاتو سربېره وکولای شول، چې د عامه اذهانو په روښانه کولو کې دومره رول ولوبوي چې خلک يې مجبور کړل، په داوطلبانه ډول حاضر شي د خپلو ماشومانو د روښانه راتلونکې لپاره دولت سره مرسته وکړي چې ښوونځي جوړ کړي. د بېلګې په توګه يادونه کولی شو، چې د پکتيا او خوست خلکو له دولت سره ۷۰ زره افغانۍ مرسته وکړه چې د دوی اولادونو ته پرې ښوونځي جوړ شي.

په ګرديز، خوست، زرمت او څمکنيو کې ۴ ښوونځي جوړ شول او لسګونه زده کوونکو ته د زده کړې اسانتياوې برابرې شوې. دا يوازې د افغانستان د يوې څنډې بېلګه ده. بله خوا له پوهنې سره د شاه مينه دومره پراخه وه چې پخپله به يې د حبيبيې، اماني او امانيه (اوسني استقلال) لېسو په ازموينو کې ګډون کاوه.

له ناستې پاستې نیولې تر اغوستو، خوړو او ظاهري سلیقې پورې ټولو ته پام جبري شو او ان په رسمي غونډو کې خو له ځانګړو جامو په استفادې ټینګار کېده.

په اردو کې اصلاحات: همدا چې شاه خپلواکي اعلان کړه او مراسم یې په شانداره ډول د کابل په سلام خانې ماڼۍ، شور بازار، عیدګاه او د کابل ښار په ځینو نورو مهمو ځایونو کې ترسره شول، نو هغه په اردو کې د اصلاحاتو په فکر کې شو. دا کار یې له خپلواکۍ د اردو د ملاتړ او رښتینولۍ په بدل کې وکړ. شاه اعلان وکړ چې د عسکرو په میاشتنی معاش ۸ افغانۍ اضافه کېږي او دا پیسې د هغوی د میاشتني معاش په ۲۰ افغانیو اضافه ورته ورکول کېدې.
شاه اعلان وکړ چې دا کار ددې لپاره کوي، څو د افغان دولت عسکر له ورځنیو مالي او ذهني تشویشونو بهر شي او په ارام زړه خپلې دندې ترسره کړي.
دا په اردو کې د اصلاحاتو پیل و او د امنیت د ټینګښت او د بهرنیو توطیو د خنثی کولو لپاره پراخ نور اصلاحات هم ترسره شول، خو د دغو اصلاحاتو نیمګړي پاتې کېدو د افغانستان د عصري کولو څپرکی نیمګړی پرېښود او افغانستان یې په سیمه کې له خپلو سیالانو نیږدې یوه پېړۍ شاته وغورځوه.

# د اماني اصلاحاتي څپرکي د نیمګړي پاتې کېدو عوامل

د افغانستان وروسته پاتې وضعیت، د وخت کموالی او د غازي امان الله خان بېړه هغه څه وو چې د افغانستان د عصري کولو لپاره یې د هغه هڅې او اصلاحي بهیر له خنډونو سره مخ کړ. اروپا ته د سفر پر مهال شاه له نیږدې ولیدل چې افغانستان څومره وروسته پاتې دی. تاریخي یادښتونه وایي: شاه د تداوم او بنسټیز بدلون ترمنځ د تعادل موندو پر ځای د هېواد ظاهري عصري کولو لپاره بېړنی پروګرام پیل کړ او پرته له دې چې په انساني ځواک د پانګونې پایلو ته منتظر شي، د خلکو ظاهري بدلون ته یې ډېر پام واړوه.

د خلکو په فکري ناسازی، وروسته پاتې وضعیت او ناپوهی سربېره بهرنی مداخلې او دسیسې هم ددې لامل شوې چې د افغانستان د پرمختګ هڅې او اصلاحي پروګرامونه نیمګړي پاتې شي او شورشونو او نظامي لښکرکشیو دغه څپرکی بیخي وتړه.

د مذهب له زاویې له هرې موضوع سره چلند کوونکو په عقده‌یي ډول دغه اصلاحات وننګول او پایله دا شوه چې اماني دوره ونړېږي. د دغو شایعاتو یوه بېلګه په ۱۳۰۷ کال کې د افغانستان په ختیځو ولایتونو کې د ځینو مجلو خپرول ښودل کېږي چې اروپایي هېوادونو ته د شاه د سفر پر مهال خپرې شوې او په‌کې په اوازو خورولو سره د شاه د سفر هدف کمرنګه شو او ان ځای، ځای دیکته کېدونکو شورشونو، خو د شاه پر ضد پاڅونونو ته هم لار هواره کړه.

یو شمېر تاریخ لیکوونکي په دې باور دي، چې بهرنیو توطیه جوړونکو له همدې موضوعاتو د فشارونو په توګه استفاده وکړه او د ملکه ثریا نیمه بربنډ تصویرونه یې بهر جوړ کړل او په خلکو یې وویشل. او داسې تبلیغ یې وکړ چې شاه د اسلام له دایرې بهر شوی او کورنۍ یې بې‌دینه شوې ده.

د حکومتولۍ په چارو کې له خلکو سره کمرنګه مشوره او د مذهبي قشر د یوې برخې له لوري د ریفورم پیل شوی دغه بهیر بدعت بلل هغه نور عوامل دي چې په ځینو ځایونو کې یې خلک، د شاه پر ضد بغاوت ته وبلل او اماني اصلاحي بهیر تورو تیارو ته داخل شو او د شاه له لوري د اصلاحاتو پیل شوی څپرکی نیمګړی پاتې شو.[2]

## د ولسمشر د حکومت پیل

ډاکتر محمد اشرف غني احمدزی د افغان ولسمشر په توګه د خپل کار د پېل په لومړیو کې د اداري فساد پر ضد پراخه مبارزه پېل او د کابل بانک د بحران د قضیې د بیا او دقیقې څېړنې هدایت یې صادر کړ، دغه راز ولسمشر د ادارې د اصلاح او ښې حکومتولۍ د رامنځته کولو په موخه د خپل کار په لومړیو شپو ورځو کې چټک او عملي ګامونه واخیستل.

د ډاکتر محمد اشرف غني احمدزي لومړني ګامونه د افغانستان د خلکو له پراخ او تاوده هر کلي سره مخامخ شول او خلک یې ښې، هوسا او بسیا راتلونکې ته زیات هیله من کړل.

---

[2]: فضلي، عزیزاحمد، د خپلواکې سلمه کلیزه، تحلیلي مقاله، ۲۸/۵/۱۳۹۸، تاند ویبپاڼه.

د نوموړي د حکومت کابو پنځه کلنه دوره له پیل راهیسې له ډېرو لوړو ژورو سره مخ وه، ښاغلي غني په خپله لومړۍ کاري دوره کې ځینې مهمې لاسته راوړنې درلودې.

ولسمشر غني داسې مهال په افغانستان کې واک ترلاسه کړ چې نړیوالو ځواکونو څخه امنیتي مسوولیتونه افغان امنیتي ځواکونو ته لېږدول شوي وو .

په افغانستان کې د ناټو پوځیانو شمېر له ۱۳۰۰۰۰ څخه کابو ۱۵۰۰۰ عسکرو ته را ټیټ شوی و، له دې بدلون سره بهرني ځواکونه د افغانستان د جګړې له ډګره ووتل او د افغان حکومت مخالفینو ته جګړې د تودولو فرصت په لاس ورغی .

له همدې کبله په افغانستان کې د جګړې لمن نوره هم پراخه شوه د بهرنیو پوځیانو لویه برخه په ۲۰۱۴ کال کې له افغانستانه ووتله.

په ۲۰۰۱م کال کې له واکه تر پرځول کېدو وروسته طالبان په لومړي ځل د ولسمشر غني د واک په اوږدو کې، په دې وتوانېدل چې د کندز، فراه او غزني ولایتونو مرکزونه د لنډې مودې لپاره ونیسي، په همدې دلیل د ولسمشر غني لومړۍ کاري دوره د سختې جګړې دوره بللی شو، چې په وار وار په کې پوځې او ولسي مرګ ژوبله هم رامنځته شوې.

خو سره له دې ټولو امنیتي ستونزو او مالي او ځاني زیانونو، د حکومت مخالف وسله وال په دې ونه توانېدل چې د جګړې ۱۷ کلن بنسټ مات کړي یا کوم محسوس پرمختګ ولري.

**ولسمشر غني د جګړې ترڅنګ د سولې سیاست ته هم د خپل کاري اجنډا په سر کې ځای ورکړ، په دې لړ کې د هغه تر ټولو ستره لاسته راوړنه له اسلامي حزب سره تر بریالیو خبرو اترو وروسته د سولې د تړون لاسلیکول وو.**

**د دې تړون له برکته اسلامي حزب د جګړې څخه د سیاست ډګر ته را وګرځېد، د افغانستان د ۴۰ کلنې جګړې په اوږدو کې دا لومړی ځل و چې د افغانستان یو حکومت له خپلې یوې مخالفې ډلې سره سولې ته ورسېد . همدا راز د ولسمشر غني لخوا د کابل کنفرانس په لړ کې د حکومت مخالفینو ته د سولې یو جامع وړاندیز وشو، چې هم په کور دننه او هم په نړیواله کچه وستایل شو، طالبان له یو داسې حالت سره مخامخ شول چې د ولسمشر غني دا وړاندیز یې رد نه کړای شو او په اړه یې چوپ پاتې شول.**

**بله خوا د ۱۳۹۷ کال د کوچني اختر په ورځو کې افغان حکومت له طالبانو سره اوربند بې سارې او زړور اقدام وکړ.**

**دې ګام د حکومت مخالفین دې ته اړ کړل چې دوی هم موقت اوربند ته په نرم زړه غاړه کېږدي، دا له ۲۰۰۱ کال څخه وروسته لومړی ځل و چې په افغانستان کې یو سر تا سري اوربند پلی شو او دا د ولمسشر غني د کاري دورې یوه بله ستره لاسته راوړنه وه، افغان حکومت او طالبانو ترمنځ د کوچني اختر په ورځو کې دوه اړخیزه اوربند غوره مهم وو او په سیاسي ډګر کې ولسمشر غني د ملي وحدت حکومت په چوکاټ کې له پیله ستونزو سره مخ و، د امریکایي چارواکو په منځګړیتوب جوړ شوي حکومت کې ولسمشر له خپل اجرائیه رییس عبدالله عبدالله سره ډېر ځله په سیاسي ناندریو اخته و.**

**ياده دې وي چې اجراييه رييس د افغانستان د اساسي قانون خلاف يو اداري جوړښت کې له ولسمشر سره واک کې شريک شو. په کابينه کې د وزيرانو گومارنه، د واليانو ټاکنه، د برېښنايي تذکرو وېش او په ټاکنيز نظام کې اصلاحات ځينې هغه مهم موضوعات وو چې په اړه يې د دواړو مشرانو جنجالونه تر رسنيو ورسېدل.**

**کله چې د ولسمشر پر لومړي مرستيال عبدالرشيد دوستم تورونه ولگېدل چې خپل يو سياسي سيال يې په جنسي توگه ځورولی، نو ښاغلي غني له هغه سره هم لاره بېله کړه .**

**دا پرېکړه د دې لامل شوه چې ښاغلی دوستم د يو نا اعلان شوي تبعيد سره مخ شو او د څه باندې يو کال لپاره ترکيې ته ولاړ، ولسمشر غني له خپل اجرائيه رييس او لومړي مرستيال سره په سياسي ناندريو کې ښکېل وه او ځيني نيږدې ملگري هم ترې بېل شول .**

**همدا راز ښاغلي غني د خپل کار په دوره کې خپل ځيني نيږدې سياسي ملگري له لاسه ورکړل، په دوی کې د ملي امنيت سلاکار حنيف اتمر، د ولسمشر غني ځانگړی سلاکار احمد ضياء مسعود، د کابينې يو شمېر وزيران او د پارلمان ځينې وکيلان شامل وو.**

**خو بله خوا بيا ولسمشر په تېرو پنځو کلونو کې په افغانستان کې د واک ځينې وړې جزيرې له منځه يوړې او د جنگسالارانو پر وړاندې کلک ودرېد. ښاغلي غني همدا راز د حکومتي چارواکو په ټاکنه او گومارنه کې د پارلمان د وکيلانو لاسوهنه تر ډېره ختمه کړه او افغان ولس يې د دې گام هرکلی وکړ .**

د بهرني سياست په برخه کې د ولسمشر غني کاري دوره تر ټولو مخکښه وه نوموړي په دې موده کې خپل امريکايي ملګري دې ته اړ کړل چې د پاکستان پرضد پرېکنده دريځ خپل کړي او دغه هېواد تر فشار لاندې راولي .

همدا راز د اسلامي هېوادونو کنفرانس او له اندونيزيا او سعودي سره د فعاله ډيپلوماسۍ پر مټ ښاغلي غني دغه اړخونه، د افغانستان د سولې د بهير ملاتړي کړل .

له هند سره د اړيکو ښه والی او پراخوالی هم د ولسمشر غني د حکومت مهمه لاسته راوړنه ګڼل کېدی شي، نوموړی وتوانېد چې افغانستان تر يوه بريده پر پاکستان له اقتصادي انحصاره خلاص کړي  او هېواد ته يې د سوداګرۍ نورې لارې ومومندلې. په دې برخه کې يو شمېر هوايي دهليزونه څه نا څه ګټور ثابت شول او له برکته يې د افغانستان سوداګريز توکي له هېواده بهر ولېږدول شول.

د سوادګرۍ په برخه کې د ولسمشر غني اصلاحات  د نړيوال بانک لخوا هم وستايل شول. افغانستان په ۲۰۱۷ کال کې له هند سره هوايي دهلېز پرانيست.

په ټوله کې د ولسمشر غني لومړۍ کاري دوره د هلو ځلو، د سولې لپاره د سياسي هڅو او د امنيت او اقتصاد په برخه کې د کار او زيار دوره وه .

ولسمشر غني په تېرو کابو پنځو کلونو کې په يادو برخو کې ډېرې هلې ځلې وکړې او د هېواد په سياسي، امنيتي او اقتصادي ډګر کې ژور بدلون راغی .

خو يو څه مشکلات يې هم درلودل، زما په اند ولسمشر پخپله هم دا خبره درک کړې وه او له همدې کبله يې ددوهم ځل لپاره  اعلان وکړ چې د خپلو

**نیمګړو پلانونو او پروژو د بشپړولو لپاره به یو ځل بیا راتلونکو ولسمشریزو ټاکنو کې نوماند وي.**

**د موقتي اداري له جوړېدو نه را په دې خوا افغان ولس، د جمهوري ریاست درې ډیموکراتیک پړاوونه ترسره کړل. که څه هم دریم ځل نویو کسانو دې مسوولیت ته ملاوې تړلې وې خو په لومړي پړاو کې هیڅ یو نوماند ونشوه کولی چې پنځوس جمع یوه رایه خپله کړي او ټولټاکنې دویم پړاو ته ولاړې.**

**که څه هم دا ډیموکراتیک بهیر له مختلفو کورنیو او بهرنیو لاسوهنو او خنډونو سره مخ شو، خو بیا هم د نړیوالو په تېر بیا د متحده ایالاتو او ملګرو ملتونو په منځګړیتوب د دوو مخکښو نوماندانو (ډاکټر محمد اشرف غني او ډاکټر عبدالله عبدالله) ترمنځ د سیاسي هوکړې په پای کې د ملي یووالي حکومت منځته راغی.**

**د ملي یووالي حکومت د جوړېدو په درشل کې اکثره سیاسي مشرانو او شنونکو وړاندوینه کوله چې د ملي یووالي حکومت به ډېر کم عمر ولري. غافل له دې چې داسې یو مشر زمونږ په برخه شوی چې ساری یې د مدیریت او سیاست په برخه کې په افغانستان او سیمه کې نه لیدل کېده.**

**که څه هم په پیل کې د دواړو مشرانو ترمنځ څه نا څه اختلافات موجود وو، چې دغه اختلافات تر ډېره د څوکیو د ویش پر سر بلل کېدل او ښاغلی ولسمشر په دې وتوانېده چې خپل ملګري ته علمې قناعت ورکړي او اختلافات له منځه یوسي.**

**خو د دواړو مشرانو هڅه دا وه، تر څو د حکومت متې وساتي او د پلویانو تر اغېزې لاندې رانشي، ډاکټر غني تر ډېره هڅه کوله چې د مدیریت اصولو پلی**

کولو ته لاره هواره کړي، لومړی تر هر څه ځان د يو قوي مدير په توګه چارو ته اوزګار کړي او د پلويانو له انحصاره ځان وژغوري، اما برعکس ډاکټر عبدالله د خپلو پلويانو په انحصار کې پاتې شو.

په پيل کې ډاکټر غني ته څه نا څه ګرانه وه، چې دواړه لوري (خپل پلويان او د ډاکټر عبدالله سره له پلويانو يې) تر غوڅ کنترول لاندې راولي. خو ده چې کوم علميت او تجربه د کړکيچ په مديريت کې درلوده، په ډېره سادګۍ وتوانېده چې دواړه لوري تر کنترول لاندي راولي.

ښاغلي ولسمشر غني په لومړي پړاو کې خپل پلويان په دريو ډلو وويشل:

متعهد او د لوړو زده کړو تکنوکراتان

بانفوذه مشران

نامشره او ځوکی غوښتونکي پلويان

لومړی کټګوري پلويان يې په حساسو موقفونو کې ځای پر ځای کړل او خپل مسووليت يې ورباندې وويشه. د امنيتي برخې مسووليت يې حنيف اتمر ته، اقتصادي برخې مسووليت يې حضرت عمر زاخيلوال ته، بهرنی چارې يې حکمت خليل کرزي ته او کورنی چارې يې احمد ضيا مسعود ته ور په غاړه کړې.

دويمه کټګوري پلويان يې چې با نفوذه شخصيتونه ول، د قدرتمنده مفسدينو او ځورواکو د تضعيف لپاره د دوی مخې ته سپر کړل، د دې با نفوذه اشخاصو شميره چې د ډاکټر غني پلوي يې کوله لس هاوو تنو ته رسيږي، چې د جمهوري رياست لمړی مرستيال، د ملي شورا استازي، سياسي او قومي مشران په کې شامل ول.

دريمه کټګوري هغه کسان ول چې په کمپاينونو کې يې د ډاکټر غني سره هلې ځلې کړې وې، مګر پايله ورته بې نتيجې ثابته شوه او له صحنې څخه ووېستل شول.

په دويم پړاو کې يې د ډاکټر عبدالله پر ټيم چاپېز عمليات پيل کړل، او هغه کسان چې په فساد تورن وو په ښه او له صحنې يې و ايستل.

ښاغلی ډاکټر غني د سياسي مفسدو قدرت غوښتونکو په مقابل کې يوه برنامه په لاره واچوله، چې له امله يې ډېری مفسد قدرت غوښتونکي په کې را ښکيل شول. دغه برنامه د کابل بانک د دوسيې پرانيستل وو، د کابلبانک دوسيه يوازې د حکومت د پيسو د را ژوندي کولو په هدف پيل نشوه، د کابلبانک په قضيه کې څو مهم ټکي نغښتي وه:

لومړی د قضا را ويښول، دويم د تېر حکومت فاسدينو ته خبرداری، دريم په تېر حکومت کې د شويو پراخو فسادونو څېړلو ته لاره هوارول، چې بېلګه يې د دفاع وزارت د قراردادونو څېړل وو، څلورم مرکزي او محلي اداراتو ته د فساد پر وړاندې د حکومت د ارادې شتون او پنځم مقابل لوری (ډاکټر عبدالله) ته د ارادي شتون زرغون ځراغ ښکاره کول.

مګر د ځينو احساساتي او لنډ پاره شنونکو له نظره د کابلبانک د قضيې را سپړل، د ډاکټر غني تيروتنه ګڼل کيږي. په حقيقت کې د دې قضيې را سپړل د ډاکټر غني لپاره يو ښه او مناسب فورمول وو چې پرې وتوانيده، مضره او مفسد عناصر له صحني وباسي او اهل کسان ترې را چڼ او د حکومتي څوکيو لپاره غوره او د لوبې بل پړاو را سر کړي.

کله چې دا برنامه په بریالیتوب سره سرته ورسېده، ډاکټر غني د حکومت د تشکیل دویم پړاو چې د کابینې ټاکل وو پیل کړل، د کابینې په ټاکلو کې يې په خورا ځیرکی او خلاقانه ډول نوماندان غوره کړل.

د ښي اوتخصصي کابينې په جوړولو کې ډاکټر غني سره د ډاکټر عبدالله هڅه او همکاري د ستايلو وړ ده، ډاکټر عبدالله د خپلو پلويانو بر خلاف د ډاکټر غني سره دا هوکړه وکړه چې مسلکي او تخصصي کابينه به ټاکې او همداسې شوه.

که څه هم د نوماند وزيرانو په ټاکنه کې څه نا څه اختلافات د دواړو مشرانو تر منځ موجود وو مگر د نوماند وزيرانو له اعلان څخه وروسته دا جوته شوه چې دغه اختلافات په ټيمونو کې د بعضو کسانو صليقوي او شخصي فرمايشات گڼل کېدل، چې دواړو مشرانو په ډير تدبير او خلاقيت سره دغه فرمايشات و نه منل.

هغه فرمايشات چې د مجبوريت له مخې منل شوي وو، د دواړو مشرانو په لارښوونه د پارلمان لخوا رد شول.

په لومړی لست کې نوماندان په مختلط ډول وړانديز شول، چې له دې جملې نه خوښ شويو کسانو د مشرانو په لارښوونه د پارلمان څخه د اعتماد رايه واخيسته او فرمايشي نوماندان په مختلفو بهانو د پارلمان لخوا د تاييد وړ و نه گرځيدل.

ځينو احساساتي شنونکو په رسمي او خصوصي مجالسو کې د کابينې ځنډيدل د حکومت کمزورتيا بلله، مگر په حقيقت کې دا يوه مسلکي، کره او د اهلو کسانو گمارنه وه چې بايد په ځيرکي تر سره شوې وای.

**د ښاغلو ډاکټر صاحبانو د ګډ حکومت دوه مهمې او اساسي دندي چې د کابينې غوره کول او ټاکل وو پای ته ورسېده.**

**د واليانو ټاکل پيل شو، خو د واليانو او سفيرانو ټاکل لږ څه ستونزمن په دې ښکاريده چې واليان او سفيران په جهادي او با نفوذه مشرانو پورې تړاو درلود. خو بيا هم د ډاکټر غني علميت او پوهې ته د داسې يو حالت مديريت کول ستونزمن کار نه و.[3]**

[3]: علمي او تحقيقي مقاله، خپرونکي، Bakhtar NEWS ، ۴/۳/۱۳۷۹.

# دويم څپرکی

## د ولسمشر کورنی سياست

د کورني سياست په برخه کې ښاغلي ولسمشر غني په پنځو کلونو کې هغه څه وکړل چې د کرزي په ديارلس کلن حکومت کې نه وو شوي.
د لومړي ځل لپاره امنيتي ځواکونو ته جدي پاملرنه او مورال ورکول، د امنيتي سکتورنو منسجم کول، د ټولنيز باور منځته رواړل، د هېواد اقتصادي سکتور پياوړتيا ته لاره هوارول، په دولتی اداراتو کې د بنسټيزو اصلاحاتو راوستل، د اداري فساد پر وړاندې غوښه مبارزه د ارادې شتون او کار اهل کار ته سپارل له هغو کړنو څخه دي چې ښاغلي ولسمشر غني تر سره کړل.
د قانون په چوکاټ کې د ملي ګټو په نظر کې نيول د ښاغلي ډاکټر غني له ځانګړو خصوصياتو څخه شمېرل کيږي.

د دولت مديريت: ښاغلی کرزی په خپل ديارلس کلن حکومت کې و نه توانيده تر څو د دولت د درې ګونو قواوو تر منځ لازمه همغږي را منځ ته کړي، په پرله پسې توګه به ملي شورا د کابينې نه شکايت کاوه، وزيرانو به د وکيلانو د ناوړه غوښتنو نه سر ټکاوه، قضا به د دواړو په منځ کې په مزو او چړچو لګيا وه او د عام خلکو اواز يوازې خدای (ج) اوريده او بس. مګر د ملي يووالي حکومت هغه بندونه چې په دريو واړو قواوو کي يې خنډ مينځ ته راوړی و ښه مديريت کړ او ټولې هغه لارې يې پرانيزلې چې له عمله يې په

**درې واړو قواوو کې پښتيا منځ ته راغلې وه چې د بيلګي په توګه کولای شو د دولتي قراردادونو څيړلو، پارلمان ته د وزيرانو د شپږو مياشتينيو کړنو راپور، د وزيرانو او وکيلانو ترمينځ د شخصي معاملاتو له منځه وړل، قضا ته صلاحيت ورکول اوداسې نور لاملونو په ګوته کړو.**

**د زورواکيو د جزيرو له منځه وړل: ولسمشر د واک جزيرې له منځه يوړې او د جنګسالارانو او غير مسوولو وسلوالو ګروپونه ونيول شول.د حکومتي چارواکو په ټاکنه کې د پارلمان د وکيلانو لاسوهنه له منځه يوړل شوه او کوچني امپراطورياني يې له منځه يوړي.**

**د ارګ او منبر ترمنځ د واټن له منځه وړل: په پنځو کلونو کې په ۳۴ ولاياتو کې ۳۳۰ جوماتونه جوړ شول.همداراز ۷۱۲ جوماتونه او د حاجيانو کمپونه بيا ورغول شول.۲۵۰ زره متره مربع فرشي جاينمازونه واخيستل شول. په ۱۷ ولاياتو کې د جوماتونو جوړولو ۶۰ پروژې تر کار لاندې وې. ولسمشر په ۳۴ ولاياتو کې له علماوو سره د ۳۴ جامع جوماتونو جوړولو ژمنه کړې وه چې اوس عملاً کار پرې روان دي.همداراز جوماتونه له ارشاد حج اوقافو وزارت سره ثبت او رسمي شو او کيږي.د ولسمشر په لومړيو پنځو کلنو کې ۴۶۳۶ جوماتونه ثبت او رسمي شول.**[4]

---

[4]: فضلي، عزيزاحمد ، په ۲۰۱۷ م کال کې د ملي وحدت حکومت کورني سياست ته يوه لنډه کتنه تحليلي لیکنه، تاند ويبپاڼه، ۴/۴/۲۰۱۸.

# د ولسمشر غني په دوره کې امنیتي لاسته راوړنې او امنیتي حالت

**امنیت: ولسمشر د خپل حکومت په پیل کې وویل چې ډېره پاملرنه یې پر امنیتي چارو راځرخي . دده له پاملرنې سره سره امنیت لاپسې خراب شو، د ولسمشر غني کاري دورې په لومړیو کلونو کې د طالبانو وسلواله ډله ډېره قوي او ډېر پیچلي عملیات ترسره کړل، تر دې چې طالبان او یا په ټوله کې مخالفین له چریکي جګړو څخه منظمو جبهه یې جګړو ته راووتل. د امنیتي ځواکونو او ولسي وګړو مرګ ژوبله هم د پخوا به انډول څو ځله زیاته شو په دې موده کې امنیتي حالت نور هم خراب شو، وسله والو سره د ولسمشر غني لفظي شخړې او توندو غبرګونونو وسله وال طالبان له سره جنګ ته تیار کړل، غني په نړیوالو غږ وکړ او یو وار بیا یې د وسله والو پر ضد په عملیاتو کې د ګډون بلنه ورکړه.چې بلاخره طالبانو د افغانستان یو شمېر ولایتونه د لنډ مهال لپاره سقوط او ونیول لکه غزني،فراه او کندوز او په ځینو سیمو کې افغان وسله وال پوځ ته د دفاعي حالت نه تعروضي حالت ته د اوړېدو بلنه ورکړه او په ده ډول یې د وسله والو طالبانو سوړ جنګ په توده جګړه بدل شو.**

**خو د لومړۍ دورې په وروستیو دوو کلونو کې ولسمشر غني په طالبانو سیاسي او نظامي فشارونه زیات کړل، دا ډله یې په ډېرو ولایتونو کې ضعیفه کړه او د سولې خبرو ته یې حاضره کړه.**

**د غني د حکومت په لومړیو کې له کورنیو ګڼو ستونزو سره سره د داعش ډلې د افغانستان په ختیځ کې پراختیا پېل کړه. دا یوه بربنډه ډرامه وه، په لومړیو**

کې په دومره ظلم او کبر پېل شوه چې غوښتل یې د چنګېز کیسې د خلکو له ذهنونو بهر کړي او دومره ظلم وکړي چې د افغانستان په تاریخ کې نه وي ترسره شوی، خوشبختانه د افغان امنیتي او دفاعي ځواکونو لخوا بېرته له منځه یوړل شوه او ولسمشر غني ننګرهار ته په سفر د داعش د ډلې د لمنځه وړلو اعلان وکړ.

د ځلور کلن امنیتي پلان جوړول: ۲۰۱۸ میلادي کال د امنیتي پلان لومړی کال و، تر ۲۰۲۰ میلادي کاله پورې د افغان کوماندو ځواکونو شمېره دوه برابره کول چې شمېر یې ۳۰۰۰۰شو. تر ۲۰۲۴ م کاله پورې افغان هوایي ځواک درې چنده کول چې ۳۰۰ الوتکې به ترلاسه کړي، هر کال به لسګونه الوتکې په لاس راځي.هغه چې په دې ډول دي؛۱۵۰ بلک هاک، MD530F 55 او 32 دانې AC-208 لیزري برید کوونکې الوتکې،۲۵ دانې A29لیزري برید کوونکي الوتکې او همدا راز د نورو Scan eagleکشفي بې پیلوټه الوتکې ترلاسه کول شامل وو. د ۲۰۲۰ م کال تر اواخرو پورې ۳٦۰۰۰ سیمیزې اردو جوړول تر کار لاندې وه چې تصفیه شویو ځایونو کې به وګمارل شي. په امنیتي سکټور کې د ګمارنې بورډ جوړ شو چې افسران شفاف او د لیاقت په اساس ټاکل کیږي.۲۰۱۸ میلادي کال کې ۲۰۰۰ زاړه افسران او جنرالان متقاعد شول او پر ځای یې ځوان مسلکي افسران وګمارل شول.د خیالي او نفوذي سرتېرو د مخنیوي لپاره ټول سرتیري بایومټریک شول او همداراز د(Army Personnel Payment System) له لارې سرتېرو ته د تنخواه ورکولو کار ۸۵٪بشپړ شو APPS د سرتېرو د جذب تر تقاعد پورې کمپیوټرایز سیستم دی.په کورنیو چارو وزارت کې پراخ اصلاحات راوړل

**شول.دسرحدي ځواکونو د ښه اداره کولو لپاره نوموړي ځواکونه له کورنیو چارو وزارت څخه دفاع وزارت ته انتقال شول.**

**افغانستان ته د ملګرو ملتونو د امنیت شورا د غړو راتګ: د ۱۳۹٦ کال د مرغومې په ۲۳ نېټه، په امنیتي برخه کې د افغان حکومت لپاره بله لویه لاسته راوړنه دا وه، چې د ملګرو ملتونو د امنیت شورا غړو کابل ته سفر وکړ او دلته یې له نږدې له افغان مقاماتو سره د امنیتي ستونزو په تړاو خبرې وکړې. هغوی د ترهګرۍ پر وړاندې له افغان موقف غوڅ ملاتړ وکړ. دا کار په نړیوال سټېج د افغانستان د نوم او نښان لپاره بې جوړې فرصت رامنځته کړ، څو افغان حکومت د ترهګرۍ پر وړاندې مبارزې داعیه برحقه ثابته کړي. افغانان یو وار بیا د نړۍ د تمرکز ټکی وګرځېدل او ترڅنګ یې له افغانستان څخه د نړۍ دوامداره ملاتړ ته زمینه برابره شوه، چې ځان له دې حالت څخه وباسي.**[5]

---

[5]: د کورنیو چارو وزارت ویاند خبري کنفرانس، د حکومت د رسنیو مرکز، ۳/۱۲/۲۰۱۸، ۲:۳۳

# د جمهور رییس غنـي ولایتـي سـفرونه، اهـداف، پـایلې او لاسته راوړنې

جمهور رییس غني په خپله پینځه کلنه دوره کې نږدې ۹ زره انفرادي او ډله‌ییز ملاقاتونه وکړل، چې موخه یې د کاري بهیر ښه‌والی او خلکو ته خدمت کول، د خلکو د نظریاتو اورېدل او په پرېکړو او ملي پروګرامونو کې د مشورو اخیستل وه.

جمهور رییس مخامخ د خلکو د نظریاتو ترلاسه کولو لپاره، په دې موده کې، د ناامنه سیمو په ګډون، محرومو او له یاده اېستل شویو ولایتونو ته ۷۰ سفرونه وکړل او د قول‌اردو د قوماندانانو په ګډون یې له سرتېرو او بېلابېلو اقشارو سره له نږدې وکتل. دغه لیدنې په مخامخ ډول د خلکو د نظریاتو د اورېدو، د ستونزو د کلیدي نقطو د تشخیص، د خلکو د غوښتنو او وړاندیزونو د ترلاسه کولو او په ملي او سیمه‌ییزو کچه ستونزو ته د واقعي حل لارو د موند لامل شوي دي.

ولې جمهور رییس باید د خلکو په منځ کې راڅرګند شي؟: له شک پرته د افغانستان د لرې او نیږدې سیمو خلک هماغسې چې د حکومتونو په تداوم او ملاتړ کې او په خلکو د خلکو د حاکمیت بهیر، د تقویت لامل ګرځي او خپل مسوولیت او رول ترسره کوي، له امتیازاتو برخمنېدو، د پراختیایي پروژو تطبیق، ستونزو ته رسېدنې او په ملي او سیمه‌ییزو پرېکړو کې د مشارکت مسلم حق هم لري، چې د افغانستان په اساسي قانون کې ذکر شوي دي.

حکومتونه مکلف او موظف دي چې د قانوني لارښونو په رڼا کې د خپلو خلکو د حقونو ملاتړ او ساتنه وکړي، د هغو د عملي کېدو زمینه برابره کړي، خلکو

ته د خادم په توګه د هغوی د ستونزو د حل په موخه اقدامات وکړي او پوښتنو ته يې ځواب ووايي. له شک پرته ددې ماموريت ترسره کول او د خلکو د ستونزو او نظرياتو ترلاسه کولو لپاره، د خلکو په منځ کې د زمامدارانو مخامخ حضور ته اړتيا ده. جمهور رييس غني د دريو قواوو (مقننه، قضايه او مجريه) د رياستونو د متصدي په توګه تر بل هر جګپوړي چارواکي زيات مسووليت لري، څو د خپلو خلکو د حقونو ساتنه وکړي او د هغوی له حال احوال خبر شي.

له بل لوري د مطلوبو او مناسبو خدمتونو ترسره کول، د دولتي او حکومتي بنسټونو په کړنو مناسب څار او چلند، له خلکو سره د جمهور رييس مخامخ اړيکو ته اړتيا لري، څو وکولی شي حکومتي او مطلوب قانوني او مقتضي اوامر مسوولو بنسټونو ته صادر کړي.

په همدې اساس د جمهور رييس ولايتي سفرونه او د خلکو په منځ کې راڅرګندېدل، د دولتي چارو په تحکيم او پراختيا کې حياتي اهميت لاره او دغه کار په نيږدې او لرې سيمو کې د پراختيايي بهير له چټکيتا سره اساسي مرسته کوله.

جمهور رييس په ولايتي سفرونو کې له چا سره کتل؟: په ولايتي سفرونو کې د جمهور ريس پروګرامونو، فعاليتونو او لېست ته په کتو کولی شو ووايو، چې جمهور رييس په خپلو ډېری سفرونو کې له لاندې ډلو او اشخاصو سره ليدلي وو.

علما او دیني شخصیتونه، مېرمنې، ځوانان، د قول‌اردو مسوولین، سیمه‌ییز چارواکي، متشبثین او صنعتکاران، فرهنګي شخصیتونه او ډلې، د پوهنتونونو استادان او مسوولین او د ښوونځیو ښوونکي، د ولایتي شورا غړي، ولسوالان په دې لیدنو کې، والي، د پارلمان استازو او اړوندو حکومتي چارواکو هم له جمهور رییس سره ملتیا کړې او د لیدنو پر مهال جمهور رییس اړوندو مسوولینو ته لازمې لارښونې کړې دي. د ولایتي سفرونو پر مهال جمهور رییس دریو زیانمنو قشرونو؛ ښځو، ځوانانو او بېوزلانو ته ځانګړې پاملرنه کړې او همداراز هڅه شوې، څو د هغو کسانو غږ واورېدل شي، چې معمولاً د یو نه یو دلیل له وجې یې غږ نه دی اورېدل شوی یا کم اورېدل شوی دی.

## د جمهور رییس د سفرونو موخې او عوامل

هغو مطالبو ته په پاملرنې چې یادونه یې وشوه او همداراز د ولایتي سفرونو پروګرامونو ته په کتو کولی شو د دغو سفرونو موخې په لاندې ډول ووېشو...

د خلکو په یاد ساتل: تر ټاکنو وروسته د خلکو منځ ته ورتلل او د هغوی په منځ کې راڅرګندېدل، ددې ښودنه وکړه، چې حکومت خلکو ته پاملرنه لري او هغوی یې د پرېکړو او پروګرامونو جوړولو په متن کې ځای لري.

خلکو ته د ځواب ویني لپاره د سیمه‌ییزو چارواکو مجبورول: د جمهور رییس ترڅنګ په غونډو کې د سیمه‌ییزو چارواکو حضور، هغوی دې ته مجبورول، څو تل د خلکو په خدمت کې وي او خلکو ته د خدمت پرمهال د کم‌کارۍ په صورت کې خلکو او قانون ته ځواب ویونکي وي.

**په پرېکړو کې مشارکت ته د خلکو هڅول:** د سيمه‌ييزو او ملي مسايلو او چارو اړوند خبرو کې د خلکو ترمنځ حضور، هغوی هڅول، څو باور وکړي، چې په حاشيه کې نه دي؛ بلکې اصلي پرېکړه کوونکي دي. د دغه فکر بنسټيزه کېدل او پراختيا يې په هېواد کې د ډيموکراسۍ بهير غښتلی کړ چې د خلکو او حکومت د نيږدې کېدو لامل شو.

**د واقعي ستونزو تشخيص او د منطقي حللارو موندل:** د بېلابېلو سيمو د خلکو لپاره يوازې د هېواد له مرکز څخه پرېکړې کول منطقي کار نه دی او اغېز به يې هم زيات نه وي، نو په همدې دليل دی چې په تېر کې پراختيايي پروژې د خلکو د واقعي اړتياوو او غوښتنو پر اساس نه دي تطبيق شوي. د خلکو منځ ته ورتلل او د هغوی د واقعي اړتياوو او اساسي غوښتنو ترلاسه کول کولای شي، د هغو د عملي کېدو لپاره حللارې برابرې کړي او همداراز د هېواد پراختيا کې هم ګټور ثابت شي.

**له زيانمنو خلکو سره غمشريکي:** د جمهور رييس د سفرونو په لړ کې د جګړو، طبيعي پېښو يا له تاريخي محروميتونو د زيانمنو سيمو ليدل کم نه دي؛ تر طبيعي پېښو وروسته د بدخشان، غزني، کندز، فراه، پکتيا، پنجشېر او... ولايتونو څخه د جمهور رييس ليدنې ددې ښودنه وکړه چې د دولت رييس ددې سيمې له خلکو سره همدردي او ورته توجه لري چې له هغوی سره، د غمشريکۍ ترڅنګ يې هڅه کړې، څو په چټک ممکنه وخت کې يې په ټپونو د مرحم پټۍ کېږدي.

د پراختیایي پروژو پرانیسته: جمهور رییس په ولایتي سفرونو کې، زېربنایي او پراختیایي پروژې پرانیستې دي او ترڅنګ یې، د پروژو د تطبیق لپاره د فرصتونو ارزونه هم کړې ده.

د خلکو او دولتي ادارو ترمنځ د فاصلو له منځه وړو هڅې: په هېواد کې د کلونو جګړو او انارشۍ له وجې، د خلکو پر وړاندې د بې‌تفاوتۍ فرهنګ دود او غښتلی شوی و. جمهور رییس د خپل حکومت په موده کې هڅه کړې، څو د خلکو منځ ته د سیمه‌ییزو چارواکو په بوولو سره، د خلکو او دولتي ادارو ترمنځ دېوالونه او خنډونه له منځه یوسي.

## د ولایتي سفرونو پایلې او لاسته راوړنې

د خلکو د ټولو غوښتنو او وړاندیزونو اورېدل: د خلکو ترمنځ د جمهور رییس حضور ددې لامل شو چې د حکومت رهبري په مستقیم ډول د خلکو غوښتنې او وړاندیزونه واوري او مسوولین موظف کړي، چې د هغوی د تامین په برخه کې اقدامات وکړي.

د پراختیایي پروژو چټکول او اسانه کول: لرې او نیږدې سیمو ته د جمهور رییس سفر د پراختیایي پروژو د چټکتیا لامل شوی چې ځینې یې له کلونو راپدېخوا ځنډېدلې وې، یا یې کارونه ډېر سست پرمخ تلل. دغه سفرونه په بنسټونو کې د عمل د چټکتیا او ورته د اړوندو مسوولینو د پاملرنې لامل شوي.

په مخامخ ډول د حکومت رهبرۍ ته د خلکو لاسرسی: د ولایتي سفرونو له لارې د خلکو په منځ کې، د جمهور رییس حضور ددې لامل شو چې د حکومت رهبرۍ ته د خلکو د لاسرسي زمینه برابره شي.

**د خدمت محوره فرهنګ بنسټ ایښودل:** ان په سختو امنیتي شرایطو کې جمهور رییس ولایتونو ته په مکرر ډول، پخپلو سفرونو سره هڅه کړې چې د خدمت‌محوره فرهنګ بنسټ کېږدي، موخه یې د واک او امتیازاتو ترلاسه کول نه وو، بلکې خلکو ته د خدمتونو وړاندې کول وه او دا چې حکومت او مسوولین باید په کومو شرایطو کې خلکو ته ځواب ویونکي وي.

**د واک له بنسټونو سره د خلکو د فاصلو لنډول:** په تېر کې خلکو د حکومت د رهبرۍ چارواکو او د واک بنسټونو ته لاسرسی نه درلود یا یې ډېر محدود لاسرسی درلود. همداراز د خلکو او د حکومتي چارو د متولیانو ترمنځ فاصله ډېره وه. خو حاضر دمه په پرېکړو، د حکومت په فعالیتونو یا د حکومت د فعالیتونو په څرنګوالي کې خلک په مخامخ ډول شریک وو.[6]

---

[6]: رسنۍ، په ۱۳۹۷ ه ش کال کې فراه ولایت ته د ولسمشر سفر او زما تحلیلي لیکنه، کورپاڼه.

# د ولسمشر سیاسي اپوزیسیون
# Political opposition

په سیاسي علومو کې سیاسي مخالفین د هېواد هغو وګړو ته ویل کیږي چې د هېواد له شته قوانینو سره سم یو سیاسي جوړښت رامنځ ته کوي او د یوې ایډیولوژي په لرلو سره خپل فعالیتونه تدوینوي. د اپوزیسیون تر ټولو دود ډول دا دی چې سیاسی ګوندونه او یا هم د یو فکر لرونکې سیاسي ډلې د هېواد د شته جوړښت په ترڅ کې سره را ټولیږي. له اپوزیسیون څخه موخه داده چې یو ډول سیاسي، اقتصادي، ټولنیز، فرهنګي او سیاسي نظام بدل شي او واک ته له سیاسي لارې ورسیږي. سیاسي اپوزیسیون د وګړو په ګډون سره د پروګرامونو په وړاندې کولو سره سیاسي واک ته د رسیدو په موخه لاره برابروي. سیاسي اپوزیسیون درې ځانګړنې لري: لومړی د سیاسي حضور قانوني کیدل، دویم د سیاسي جوړښت ارګانیک والی او دریيم هم د دکتورینو او پروګرامونو درلودل.

سیاسي اپوزیسیون له مشروع لارې خپلې کړنې همغږې کوي، سیاسي کمپاین کوي او هڅه یې دا وي چې خپل پروګرامونه یو ډول په ټولنیز بحث (Public Discourse) بدل کړي. له دغه بحث څخه ددوی موخه دا وي چې ور ماموریت او بدلون ته لاره هواره کړي. یانې داسې چې هېوادوال د یو بل منلو په ترڅ کې د ځان لوري ته ور کاږي. سیاسي اپوزیسیون د خپلو

پروګرامونو په لړلو سره کوښښ کوي ځان ته د خلکو پام ور واړوي او ملي باور خپل کړي. ملي باور کولای شي چې سیاسي واک ته د رسیدو موکه برابره کړي.

په اصل کې سیاسي اپوزیسیون، د سیاسي واک لپاره مدني مبارزه ده. دا برخه په نړۍ کې د سیاسي نظام د جوړښت یوه دموکراتیکه برخه ده.

د طالبانو د حکومت له ړنګېدو وروسته چې کله د حامد کرزي په مشرۍ نوی حکومت رامنځته شو، د نوموړي حکومت په وړاندې تر ټولو لویه ننګونه اداري فساد و چې د اداري فساد لوی عامل په خپله حامد کرزی بلل کېده ځکه چې حامد کرزی د جنګ سالارانو، زورواکانو په وړاندي قاطع دریځ نه درلود او حتا دهغوی په حمایه کې یې لا هم د حامد کرزي لاس و.

بې عدالتي د دولت او ولس تر منځ فاصله په نړیواله کچه د نړۍ دوهم فاسد هېواد هغه څه وه چې حکومت یې د لویې ننګونې سره مخ کړی و، د ولس حوصله هم تنګه شوې وه، ولس هم د بدلون خبره کوله کله چې ډاکتر اشرف غني واک ته ورسېد، هغه په خپلو انتخاباتي شعارونو کې د تحول او تداوم شعار ورکړ، زه د یو ځوان سیاستوال او افغان لیکوال په حیث مسولیت لرم چې د خپل هېواد د ملي ګټو په خاطر حقایق ووایم.

زه دا منم چې ډاکټر اشرف غني په حکومت کې ستونزي وې، د حامد کرزي په حکومت کې هم ځینې مثبتې کړنې موجودې وې زموږ قضاوتونه باید داسې نه وي چې هغه مطلق مثبت مطلق منفي وي، هر څه باید دقیق وارزوو او بیا قضاوت وکړو، زه د ډاکټر صیب اشرف غني د حکومت سیاسي مخالفینو په اړه دومره وایم چې د هغوی مخالیفتونه پر ملي ګټو ولاړ نه، بلکه لویه برخه

يې د سياسي واک د غوښتنو په معنی وه چې په دې هر افغان پوهیږي، ددغو سياسي مخالفينو له ډلو څخه چې یوه ډله په ترکيه کې عبدالرشيد دوستم، عطا محمد نور، محمد محقق ،احمد ضيا مسعود او صلاح الدين رباني ترمنځ ايتلاف وشو، ددې تر څنګ انورالحق احدي د اپوزيسيون په نوم يو ادرس اعلان کړ او بل پلو په کندهارکې د دېرشو وکيلانو او د ځينو سياسينو په شمول غونډه جوړه شوه چې د غونډې عنوان د امنيتي ځواکونو ملاتړ و، خو دا هرڅه برعکس وه د موجوده حکومت په وړاندې له ګواښ ډکې خبرې وسوې او په دوی کې ډیری داسې خيرې وې چې د هغوی خيرې د ملي ګټو په اساس نه، بلکه د شخصي ګټو پر اساس وې، زه د ترکيې د ناستې يادونه کوم زه د ترکيې د ناستو کسانو د هر فرد په اړه خپل نظر وايم زه د ښاغلي دوستم په اړه وايم چې ايا د ډاکتر اشرف غني مخالفت به دده سره پر ملي ګټو وه که په شخصي ګټو؟ د دوستم حرکتونه په شمال کې د خودسره عمليات د ايشچي سره دومره ناوړه چلند تاسې قضاوت وکړي چې ايا ددوستم سره مخالفتونه پر څه وو؟ د هېواد د ولسمشر د لومړي معاون په حيث دده کومه کړنه د هېواد يا د ولسمشر اشرف غني سره د ملي ګټو په خاطر وه چې مخالفتونه يې زيږولي دي.

احمدضيا مسعود چې په ښې حکومت داري کې د ولسمشر خاص استازی و، کومه لاسته راوړنه يې درلوده او په کومه ورځ چې له دندې ګوښه شو په هم هغه ورځ يې حکومت چيلنج او بد معرفي کړ. محمد محقق چې د اجراييه رياست دوهم مرستيال و، دده خبره دا وه چې اشرف غني واک انحصار کړی دی او د وزيرانو صلاحيتونه يې اخيستي دي، زه دا خبره کوم دوی خو دا

ډول صلاحیتونه غوښتل چې په دې وطن کې د وزیرانو مقررۍ په قومي او تنظیمي ډول وشي، هر وزیر چی زړه یې غواړي هغه وکړي، هغه معیارونه چې د مقرریو لپاره په نظر کې نیول شوي وو، دوی هغه معیارونه نه منل دوی واک انحصار میعار ته وای، صلاح الدین رباني چې د خارجه چارو وزیر وو خیرخیرت وو، کله چې له وزارته لرې شو بیا هرڅه خراب شول او د حکومت په وړاندې راووتل د انورالحق احدي په اړه درته وایم چې د کرزي صیب په دیارلس کلن حکومت کې پر وظیفه پاتې شو، یوه ورځ یې هم د فساد او بې عدالتي خبره ونه کړه، کله چې د ډاکټر اشرف غني په حکومت کې له وزارته پاتې شو، بیا یې اپوزیسیون اعلان کړ. حتآ ده په خپل یوه مرکه کې وویل چې ډاکترصاحب اشرف غني زما سره د وزارت خارجه قول کړی دی، اوس که وزارت ورته ورکړې خیروخیرت دی، که وزارت نه وي بیا هرڅه خراب دی لکه د ډاکتر صیب فاروق وردگ چې د وزارت له مقرریدو مخکې په خپل یوه مرکه کې وویل چی د ډاکتر اشرف غني حکومت پر ای ایس ای خرڅ شوی دی او دا حکومت مشروعیت نه لري، اوس خبره داده چی پر ای ایس ای خرڅ شوي حکومت کې باید بیخي سړی کار ونه کړي، نور ټول مخالیفتونه لکه د نظار شورا حراست او ثبات شورا همدغسې وارزوي.

زه د ډاکتر صاحب اشرف غني د حکومت د څو مثبتو بېلګو یادونه کوم هغه خارجي سیاست ډېر واضح څرګند کړ، پاکستان او ایران چې دافغانستان د خاوري دښمنان دي هغوی دواړه یې په فریاد کړل د افغانستان اساسي پروژو، بندونو او

**خاص ډول د اوبو د مهارولو باندې يې کار پيل کړ په هېواد دننه يې مافيا او زورواکان کمزوري کړه.**

**دا صحيح ده چې واک او قدرت د انسان فطرتي غوښتنه ده، په ولسواکۍ کې غونډې او مظاهرې د هر چا حق دی خو ملي ګټې بايد وپالل شي. دوی بايد د ډاکټرصيب اشرف غني د حکومت منفي کړنو ته اشاره کړې وای او داسې دلايل يې وړاندې کړي وای چې هغه هر چاته د قناعت وړ وای، نه داچې بس زه خوابدی يم او دا حکومت نور د چلند وړ نه دی دانو بيا ولس نه مني خو هرڅه بايد د هېواد د ملي منافعو او ګټو په لرلو سره وغوښتل شي. زه ددوی دغه کړونو ته اپوزيسيون هم نه وايم، ځکه چې اپوزيسون ملي ګټې او ارزښتونه نه تخريبوي، بلکې اپوزيسون دنده داده چې حکومت بايد اصلاح کړي دغه حرکتونو ته د حکومت سياسي مخالفين ويل کيږي اوس هم موږ د ډېر بد حالت څخه تېرېږو په کار داده چې تر شخصي ګټو تير او د هېواد ملي ګټې خپل اوليتونه وبولو تر څو د موجوده ناخوالو څخه ځان خلاص کړو.**[7]

---

[7]: بريال، نوراحمد، په ديموکراتو نظامونو کې د اپوزيسون نقش او اغيزمنتيا، لکچر نوټ، جهان پوهنتون.

## د اپوزیسون لخوا په ولسمشر،او د نظام پـر ځینـو کلیـدي اشخاصو بې اساسه تورونه

دا چې له مودو راهیسې مو د قدرت انحصار له تنظیمي، سمتي او ولسي ټېکه دارانو سر و، نو همدا لامل و چې دې حلقو ځینې د کار او زیار څېرې نشوي زغملی، د همدې قدرتي انحصارګرو مالومه حلقه وه چې پخوانی ولسمشر کرزی صېب او اوسنی ولسمشر غني یې په لومړیو کې دومره منحصر ساتلي وو چې ان د ولایتونو له سقوطه به یې هم نه خبرول.
د واک غوښنه برخه د یوې جنګي ډلې جمعیت په لاس کې و. جهاد او مقاومت یې د مشروعیت لایسنسونه وو. نابالغه ماشومان یې ان تر جنرالۍ رسیدل. په پښتنو کې هم هغه د ګوتو په شمار بزدله او کمزوري پښتانه په لومړۍ دوره کې د ولسمشر ترڅنګ وو چې نه یې مشوره ورکولی شوه او نه یې د ملت په خیر کومه خبره په جرت پوره وه.
بس د پښتنو په سهمونو ناست کمیشنکاران وو، ولسمشر او اداره یې دومره بدنامه کړې وه چې تر ملاقاتونو یې هم خوږ جنګي کوله، ولې د ځوانې ادارې (محب، فضلي، امرخیل، معصوم ستانکزي) او ځینو نورو چارواکو په راتګ سره ولسمشر ته ډېر حقایق تر کاري مېزه ورسېدل.
خیالي تشکیلات او ادارې په عملي تخنیکي کادرونو سنبال شوې، د ولسمشر له څنګ نه د ډېرو هغو خلکو کډې بار شوې چې نه د کېفیت حساب پرې کېده او نه د کمیت، ځوانې ادارې ته ډېری جنجالونه او مخالفتونه کمپاین جوړ کړل، ډېر هغه خلک او مشران چې د کمپاینونو ټیکه داران وو، د لوړو امتیازاتو غوښتلو له امله حاشیه کې پاتې شول.

**بله ډله هغه جهادي مشران وو چې اتلس کاله يې د سياست او کمپاينونو ټيکې لګولې وې چې له کمپاين خلاصون سره به يا خپله او يا به يې زامن د وزارتونو او ولايتونو مستحق بلل، د ځواني اداري او د ولسمشر متعهد ټيم په طرحه کې انحصاري او فرد محوره کمپاين او کمپاينرانو ته ځای نه و.**
**کمپاين مطلقًا ولسي شو چې د لسګونو کمپاينرو دفترونو د جوړېدو لامل هم همدا و چې هرسړی او طبقه په کمپاين کې خپل ځان وګوري چې په دې کار د ډيرو انحصاري سياسي سوداګرو تصنوعي رنګ لا پيکه شو، دا چې يو شمېر سياسينو او افرادو له کمپاين وړاندې غتې،غتې ژمنې او خبرې ولسمشر او ټيم ته کړې وې، نو چې وخت يې راغی او ثابت يې نه کړای شوې، نو ضرور خبره ده چې د پاتې راتلو له امله بايد د کار د اجرا لپاره بل با انرژي کاري ګروپ رامنځ ته شي.**
**تاسې يې په اوس وخت کې کتلی شی چې د وزارتونواو ادارو کارونه او ټولو هېوادنېو مسايلو ته لاسرسی چې څومره په زيرکتيا پرمخ وړل کيږي، عملي بېلګې دي. د ارګ د تېر وخت او اوسنی وخت کاري ټيم وګورئ او پرتله يې کړئ، څومره علمي او مسلکي دی؟**
**له وزارتونو او ادارو سره د ارګ پراخې اړيکې همغږي، کاري راپور اخيستل او د کړنو کاري تعقيب له تېرو شلو کلونو راهيسی لومړی نوښت دی، دا چې يو شمېر عقديان او انحصارګر حاشيې ته شوي و او دي نو هر رنګ هڅې يې پېل کړي، تر څو مو ځوان کادرونه ، ولسمشر او دا اداره بدنام او له صحنې لرې کړي دا دومره جالبه خلک وو چې په خپله کينه کې ترې ملي ګټې او عام المنفعه ښېګڼې هېرې شوې وې .**

یو شمېر په نامه پښتانه چې اراده یې لرله تر څو هرڅه په خپلو ګټو وڅرخوي ولسمشر د دوی په واک وي تور ته به سپین او سپین ته به تور وایي، له ادارو او ملي پانګوالو به د تېر په څېر باجونه اخلي، بس چې څه یې خوښه وي کوي به یې هغه څه چې د ولسمشر غني حکومت کې نشته او نه یې ځای درلود .

نو دې خلکو شروع وکړه په یو شکل نه یو شکل یې غوښتل چې داسې ځوان مدیران بدنام او له صحنې وباسي چې تر څو دوی او د دوی شریکانو ته میدان خالي شي.

دا ټوله بدنامي او مخالفتونه د سیستماتیک انحصار لپاره وه، نه د وطن لپاره.

## د ولسمشر پر شخصي حریم بې اساسه تورونه

- کله به یې ویل چې ډاکټر اشرف غني احمدزی سیکولر دی؛ دا په داسې حال کې چې ډاکټر اشرف غني احمدزي د حج فریضه ترسره کړې، د دیني علومو لوی عالم دی، د عمر ډېره برخه یې د اسلامي علومو، اسلامي فلسفې او سیرت النبي په تدریس کې تېره کړې، د اسلام د سپېڅلي دین مقرراتو، اصولو او ارزښتونو د لا تحقق لپاره یې بشپړ پلان درلود او کله چې د ارګ او د مسجد ترمنځ څوک واټن غواړي، دغه کس ته وایي سیکولر، خو ډاکټر اشرف غني احمدزی دواړه پخلا کړل او د دوی ترمنځ یې د امتیازاتو توپیر له منځه یووړ.
- کله به یې ویل چې ډاکټر اشرف غني احمدزی مریض دی ؛ دا په داسې حال کې چې ډاکټر اشرف غني احمدزی تر نن ورځې پورې له پوره

روغ صحت څخه برخمن دی او ډاکټران وايي چې ډاکټر اشرف غني احمدزی هېڅ ډول ناروغي نه لري.

- کله به يې ويل چې د ډاکټر اشرف غني احمدزي ښځه عيسوی ده؛ دا په داسې حال کې چې د ډاکټر اشرف غني احمدزي مېرمن عربه مسلمانه ده، ديني علومو کې دومره برلاسی لري چې د ډاکټر عبدالله عبدالله مېرمن څه حتی ډاکټر عبدالله عبدالله او مرستيالان يې د ډاکټر اشرف غني احمدزي د مېرمنې پر وړاندې عاجز دي. قدرمن لوستونکي بايد په خپله فکر وکړي چې يو مسلمان ته کافر ويل په اسلام کې څه حکم لري.
- کله به يې د ډاکټر اشرف غني احمدزي د مېرمنې عکسونه په کمپيوټر کې په بې حجابۍ او جعلي ډول جوړول او خپرول؛ دا په داسې حال کې چې له ځوانۍ نه تر دې دمه د ډاکټر اشرف غني احمدزي مېرمن له اسلامي حجابه پرته بل حجاب نه دی اغوستی.[8]

پر دولتي دستګاه او د نظام پر مهمو او کليدي اشخاصو د جنسي ځورونې، اداري او مالي فساد  بې اساسه تورونه: په خاص امنيت کې د ولسمشر اشرف غني سلاکار جنرال حبيب الله احمدزي،له دندې څخه تر لرې کېدو وروسته له يوې رسنۍ سره په مرکه کې ادعا وکړه چې په ولسمشرۍ ماڼۍ کې ځينې مشخصې کړۍ  د فحشا د ترويج له پاره کار کوي او دا چې يو شمېر ښځو ته د جنسي اړيکو په بدل کې دولتي دندې ورکوي.

---

[8]: د ولسمشر اپوزيسون ډلې رسنيز بحثونه، فيسبوک پاڼې ليکنې او ټويټونه.

**چې ولسمشرۍ ماڼۍ دغه ادعاوې په کلکه رد کړې او له لویې ځارنوالۍ څخه یې په دې اړه د څېړنو غوښتنه وکړه چې لویې ځارنوالۍ ځو وارې له احمدزي څخه د خپلې ادعا د اثبات په موخه، د اسنادو د وړاندې کولو غوښتنه وکړ. خو هغه پر دې کار ونه توانیدلو. د دې تر څنګ د ځارنوالانو د پوښتنو ځوابولو ته هم حاضرنشو چې وروسته ښاغلی احمدزي په ارګ د فحشا د تورونو لګولو رسمي ښنه وغوښته .[9]**

[9]: له شمشاد راډیو تلویزون سره د جنرال حبیب الله احمدزي مرکه، ۱۳۹۸.

# درېيم څپرکی

## د افغانستان معاصر بهرنی سياست

د بهرني سياست په تحليل کې دوه کړنلارو ته په پام سره، پنځه کړنلارې د نورو په پرتله ډېر ارزښت لري. د بهرني سياست رياليستيکه (واقعيت‌پاله) کړنلاره، د بهرني سياست د پرېکړې کړنلاره، د بهرني سياست پېژندنې کړنلاره، د پرتليز بهرني سياست کړنلاره او د بهرني سياست په تحليل کې اوبدلې (متني) کړنلاره، ددې حوزې له مهمو کړنلارو څخه شمېرل کېږي، چې لاندې هر يو ته لنډه کتنه شوې ده.

د بهرني سياست رياليستيکه (واقعيت‌پاله) کړنلاره: دا کړنلاره په نړيوال سياست او اړيکو کې له دوه کړنلارو څخه ده، خو له دې سربېره د بهرني سياست په تحليل کې د ګټې اخيستو قابليت لري. دا کړنلاره د بدبينانه، مادي معرفت پېژندنې اثبات پاله عينيت‌پاله او د بهرني سياست لارښود په توګه د قدرت پر اساس د ملي ګټو سناريو کړنلارې پر بنسټ د بهرني سياست په اړه د نړۍ ساده‌کولو او د عموميت موخو وړاندې کولو قابليت لري. په دې کړنلاره کې پرېکړه په نړيوال انارشيک (بې‌نظمه، بې‌قانونه) چاپيريال کې، د دولتونو د تعامل او د نړيوال نظام د جوړښت عناصرو ته پام کوي.

**د بهرني سياست تحليل لپاره د پرېکړې کړنلاره: دا کړنلاره د نړۍ نظام د جوړښت او په بهرني سياست کې د دولتي**
**جوړښت له فرضي ټاکونکو عناصرو څخه د نيوکې ترڅنگ، د دولت دننه عواملو او ډيناميک (محرکه ځواک) ته پام کوي او بهرنی سياست د پرېکړې له شخصيتي، روان پېژندنې فاکتورونو څخه د پېچلي ترکيب محصول معرفي کوي**
**د پرتله ييز بهرنی سياست کړنلاره: دغه ډول فرصت برابروي چې په بېلا بېلو هېوادونو کې د يوشان پېښو په تطبيقی موردي مطالعې سره د مختلفو مواردو ترمنځ ورته‌والی او توپيرونه مشخص او يو له بل سره پرتله کړي. همدارنگه په دغه ډول کړنلاره کې د يوه حکومتي پرېکړه نيونکي بهرني سياست په پخوانۍ دوره کې له حکومتي پرېکړې سره په ورته مواردو کې څېړل کيږي.**
**د پيژندنې کړنلاره: د بهرني سياست په تحليل کې دا کړنلاره، د پرېکړه نيونکې کړنلارې په څېر ده، خو توپير يې په دې کې دی، چې په بهرنی سياست کې د پرېکړه نيونکي په اخيستو(برداشتونو) له حده زيات ټينگار کوي. ددې کړنلارې مهم تنوعات له احساساتو، ايډياوو، ارزښتونو، نظام باورونو، شخصيت، اخيستې او ناسمې اخيستنې او د اطلاعاتو له پروسس څخه عبارت دی. د ليد لوري پر بنسټ، د سمون پيژندنې نظريې لپاره هغه اطلاعات او اخبار ډېر ارزښت لري چې د هغوی له فکرونو سره تناسب ولري.**
**اوبدلې (متني) کړنلاره: د بهرني سياست په تحليل کې د پورته کړنلارو ترڅنگ، اوبدلې کړنلارې هم شته چې متکثرو عناصرو ته په پام سره بهرنی سياست تشريح کوي. د بهرني سياست د تحليل يو له نوموتو مفکرينو څخه**

**جېمز روزنا، د اوبدلې کړنلارې په چوکاټ کې د اړوندېدو طرحه وړاندې کوي. د نوموړي اصلي موخه په ورته وخت کې د کورني او نړيوال چاپيريال عواملو، مادي او مانای جوړښتونو او فردي سطحي عواملو ته پام کول دي.**

**د پورته مطالبو پر اساس د افغانستان د معاصر بهرني سياست په څرګندولو کې بايد وويل شي، چې د افغانستان د بهرني سياست ويشنه لږ نا شونې ده، او که د بهرني سياست د واقعيت پاله کړنلارې پر اساس جامع تحليل وړاندې شي. له ملي ګټو څخه عيني تفسير کمزوری دی، بلکې د ملي ګټو په حوزه کې د تفسير ذهني اړخ غښتلی دی او د افغانستان د ټولنيز بومي عناصرو پر اساس جوړ شوی دی. په دغسې بهرني سياست کې په پرېکړه نيونکو نخبګانو کې بدلون، په ملي ګټو کې هم بدلون رامنځ ته کوي. په دې تړاو مهم مثال، د امنيتي تړون لاسليک کولو په برخه کې مختلف اندونه وو. له امريکا سره د امنيتي تړون لاسليک په اړه، د ملي ګټو پر اساس د پخواني ولسمشر حامد کرزي اند د ولسمشر محمد اشرف غني له اند سره چې بيا هم د ملي ګټو پر اساس شمېرل کيږي، توپير درلود. داسې مالوميږی چې د پرېکړه‌نيونې او پيژندنې کړنلارې پراساس، بهرنی سياست عموما د واک پر سر د نخبګانو له نيتونو، احساساتو، ارزښتونو، نظام باورونو، شخصيت او اخيستو زېږنده دي، چې له سياسي، ټولنيزو، فرهنګي او اقتصادي عواملو څخه په اغېز منلو سره جوړښت پيدا کوي.**

**بيخې کم وخت بوريوکراتيک (په ادارې چارو پورې تړلي) او سازماني عوامل په مخامخ توګه کولی شي، د بهرني سياست په تحليل کې مثبتې اغېزې ولري. ان په ځينو مواردو کې جوړښتي او سازماني عناصر د هېواد په سياسي**

پرېکړو کې د خلاقيت خنډ په توګه شمېرل کيږي. په دغسې شرايطو کې جوړښتونو ته لږ پام کيږي، د جوړښت موثريت کميږي او د پرېکړه‌نيونکو په تغيير سره، د بهرني سياست جوړښت نشي کولی په بهرني سياست کې د نوو پرېکړه‌نيونکو لپاره اړين رول ولري. له دې کبله، د جېمز روزنا د اړوندېدو طرحې او بافتاری تګلارې پراساس، اړتيا ده چې د کورني او نړيوال چاپريال عواملو ترڅنګ، مادي او مانايي جوړښتونو او سطحي فردي عواملو ته پام وشی. يانې د بهرني سياست د تحليل کړنلارو زيان کمولو لپاره اړتيا ده، چې له يوې خوا د نوو سياست‌کونکو لپاره جوړښتي عواملو ته د لارښوونکو عناصرو په توګه پام وشي او له بلې خوا، د بهرني سياست د رامنځ ته کولو په بهير کې د پرېکړه نيونکو کسانو خلاقيت.[10]

د افغانستان ګونګ بهرنی سياست او د ګاونډيانو مداخلې: د افغانستان دولت د دوست او دښمن په تعريف نه وو توانېدلی، پاکستان او ايران يې نيږدې او ورور هېوادونه بللي، خو دغو دولتونو تل د افغانستان په چارو کې مداخله کړې، ايران په ښکاره افغانستان اشغال شوی هېواد ګاڼه او افغانستان د هغوی پر وړاندې سکوت کړی و.

د افغانستان دولت د پاکستان د دغه ښکاره مداخلو او په سلګونه پاکستاني پوځيانو له نيولو او وژلو سره لا نه و توانېدلی، چې پاکستان ته د افغانستان په کورنيو چارو کې د هغوی د لاسوهنې په اړه قناعت ورکړي او له سياسي لارو دغه ستونزه حل کړي. زما په نظر، د دغو ستونزو اصلي لامل په افغانستان کې

---

[10]: https://www.trt.net.t/AP. 2018/5/11 .

د یوه معیاري او کره بهرني سیاست نښتوالی و، بهرنی سیاست له نورو هېوادونو، بهرنیو ټولنو، دولتي او غیر دولتي سازمانونو سره د ځانګړو اصولو، دندو، موخو او تګلارو له مخې ټاکل کېږي، د بهرني سیاست تر ټولو مهمه برخه اقتصادي سیاست، علمي او فني سیاست ایډیالوژیک سیاست، مذهبي سیاست او امنیتي سیاست دی.

دغه سیاست باید له نورو ملکونو سره د خپلو ګټو په پام کې نیولو سره برابر شي، خپل دوست او دښمن وپیژندل شي، د سوله ییز ژوند لپاره زمینه برابره کړي او په ځانګړې توګه له ګاونډیو سره د شریکو پولو د لرلو له کبله ځانګړي مقررات وضعه شي، د هغوی په کورنیو چارو کې مداخله ونه شي او نه هم پرېښودل شي چې د هېواد په کورنیو چارو کې مداخله وکړي. هغه پالیسۍ او کړنلارې چې یو هېواد یې له ملي کچې پورته د سیمې او نړۍ د هېوادونو سره عملي کوي، په بهرني سیاست کې شاملېږي.

د بهرني سیاست په لرلو او د نورو په کورنیو چارو کې د مداخلې د ممنوعیت په صورت کې، د ټولو ازادي او استقلالیت ساتل کېږي او د بهرني سیاست تر ټولو مهمه موخه همدا ده چې د یو هېواد استقلالیت په کې وساتل شي.

د افغانستان د اساسي قانون په اتمه ماده کې راغلي، دولت د هېواد خارجي سیاست، دخپلواکۍ، ملي ګټو او ځمکنۍ بشپړتیا په ساتلو، نه مداخلې، ښه ګاونډیتوب، متقابل احترام او د حقوقو د برابرۍ پر بنسټ تنظیموي

افغانستان په وچه کې راګیر هېواد دی، د تجارت لپاره تر ټولو مهمه داده، چې باید له ګاونډیو هېوادونو سره ښې اړیکې ولري.

په بهرني سیاست کې سره له دې چې کلتوري او مذهبي او ژبنیو ارزښتونو ته هم ډېر پام کېږي، خو د اقتصادي پرمختګ او په هېواد کې د امنیت را وستلو لپاره د افغانستان تر ټولو زیاته اړتیا ده.

افغانستان په وچه پورې د محدودیت تر څنګ د قوي هېوادونو په منځ کې پروت دی او له دوی سره ښو اړیکو ته اړتیا لري. زما په اند، دغو اړتیاوو ته په پام سره افغانستان ته یو متوازن بهرنی سیاست په کار دی چې دا کار د ملي وحدت حکومت وکړ او یو قوي او متوازن بهرنی سیاست یې رامنځته کړ. افغانستان په تېرو ۱۴ کلونو کې ونه توانېد، چې د بهرني سیاست اساسي خطوط اماده او پارلمان ته د تصویب په موخه واستوي. په افغانستان کې موږ د یوه غیر تعریف شوي او مجهول بهرني سیاست سره مخ وو.

له ۲۰۰۱م کال را وروسته بیا د حامد کرزي د ولسمشرۍ د دویمې دورې تر پایه، د افغانستان پر بهرني سیاست ډېرى مهال له دې امله نیوکې موجودې وې چې ګواکې په غبرګوني ډول مخته وړل کېږي. له دې ورها خوا په دغو ۱۳ کلونو کې له ګاونډیانو سره د اړیکو خرابوالی، د ګاونډیو او نورو هېوادونو پر وړاندې د متوازن بهرني سیاست نه لرل هغه څه وو چې په دې موده کې یې د افغانستان پر بهرني سیاست نیوکې زیاتې کړې وې.

# د ولسمشر بهرنی سیاست

د بهرني سیاست په برخه کې د ولسمشر هلې ځلې د ستایلو وړ دي. په تېرو دیارلسو کلونو کې د افغانستان بهرني سیاست کوم مشخص تعریف نه درلوده، هر هېواد به نن دوست وه سبا دښمن، متحده ایالات به کله د افغانستان نه بیلیدونکی دوست وه او کله به تر ټولو لوی دښمن، پاکستان به کله ورور وو کله د لستوڼې مار، کله به چې متحده ایالاتو لږ فشار راوړ نو شپه به مو مسکو کې وه او ورځ به مو تهران کې او ښاغلي کرزي به د پیسو له کڅوړو سره بیرته کابل ته راته. د سعودي او چین سره چې د افغانستان په سیاسي او اقتصادي لوبو کي خورا مهم لوبغاړي بلل کیدل هیڅ پیژندګلوي نه وه، چین ته به سفرونه یا نمایشي ول او یا د سیاحت او تفریح لپاره. مګر د ملي یووالي حکومت د جوړیدو راپدیخوا ښاغلي ولسمشر غني په څو هغو هېوادونو کې چې د افغانستان د مشکلاتو بیړي پکښې خښه وه، تمرکز وکړ او خپلي اصلي او اساسي غوښتني یې چې وې په عملي بڼه ورسره مطرح کړي.

افغانستان په تېرو ۵ کلونو کې له نړیوالې ټولنې سره پراخه اړیکې ټینګې کړې، په ډېری هېوادونو کې د افغانستان سفارتونه پرانیستل شول او افغانستان کې هم د لسګونه هیوادونو سفارتخونې شته او افغانستان په رسمیت پیژني. د هند، پاکستان، انګلستان، امریکا او یو شمېر نورو سترو هیوادونو سره ستراتیژیک تړونونه او همدا ډول یې لسګونه اقتصادي هوکړه لیکونه هم لاسلیک کړل.

په اسیا کې د سارک سازمان، سیکا د همکاریو سازمان، د شانګهای د سیمه ییزو همکاریو سازمان، د اسلامي هیوادونو د کنفرانس سازمان، د ایکو د اقتصادي

**همکاریو سازمان د غړو هیوادونو له ډلې دی، د نړیوالې سوداګرۍ سازمان غړیتوب لري، د پاکستان سره د اپټا اقتصادي تړون لري چې له مخې یې له دغه هیواد سره ټرانزیټي ستونزې حل کېږي.**
**ولسمشر غني په دې وتوانېده چې د اسلام اباد سره د اپټا اقتصادي تړون عملي کړ ، ددغه تړون له مخې افغان سوداګر وکولی شول چې د پاکستان د واګه او ګوادر بندرونو له لارې هند ته د افغانستان محصولات صادر کړي.**
**د ملي وحدت حکومت بله پام وړ لاسته راوړنه دا وه چې ویې کولی شول د اسیا پراختیایي بانک، د لویو بندونو نړیوال کمېسیون، د اوبو نړیوالې ټولنې، د نړۍ ښاري حکومتولۍ، د ملګرو ملتونو د بشري حقونو شورا، د سوداګري نړیوال سازمان ،د برېښنایي حکومتولۍ سازمان او د کرکېټ نړیوالې شورا غړیتوب ترلاسه کړي.**
**په ۲۰۱۴م کال کې د ملي یووالي حکومت له راتګ سره، اشرف غني د ولسمشر په توګه د لوړې د مراسمو پر مهال وویل: چې د افغانستان ستونزه بهرني ابعاد لري او له همدې امله بهرنی سیاست د هېواد لپاره حیاتي ارزښت لري. ولسمشر غني د افغانستان د بهرني سیاست اړوند پنځه کړۍ معرفي کړې. په دغو کړیو کې هېوادونه او نړیوال سازمانونه په لاندې پنځو برخو وېشل شوي وو.**
**لومړۍ کړۍ: ګاونډي هېوادونه**
**دویمه کړۍ: د اسلامي نړۍ هېوادونه**
**درېیمه کړۍ: امریکا، اروپا، جاپان او کاناډا**
**څلورمه کړۍ: اسیایي هېوادونه**

**پنځمه کړۍ: نړیوال سازمانونه**

په ټولیز ډول په دې دوره کې د بهرني سیاست تر ټولو ډېره پاملرنه، د سولې قضیې، اقتصادي پیوستون او د نړیوالو مرستو راجلبولو ته وه. د سولې په برخه کې ګاونډیو هېوادونو او اسلامي نړۍ ته زیاته پاملرنه وشوه، ځکه دا هیوادونه په تېرو څلورو لسیزو کې د افغانستان په قضیه کې ښکېل ول. خو دا چې افغانستان د امریکا، اروپا، کاناډا، جاپان او ځینو نړیوالو سازمانونو پر مرستو او ملاتړ متکي و او دي، نو ځکه دوی ته هم د ولسمشر په تګلاره کې ځانګړې پاملرنه وشوه. په دې دوره کې د یوه اغېزناک او ګټور بهرني سیاست لپاره د ملي یووالي حکومت له هڅو سره سره، بیا د حکومت د بهرني سیاست تګلارې د ځینو لاسته‌راوړنو ترڅنګ ستونزې او نیمګړتیاوې هم لرلې.[11]

## د بهرني سیاست لاسته راوړنې

د ولسمشر غني په دوره کې د ملي یووالي حکومت د بهرني سیاست تګلاره لاندې لاسته راوړنې لري.

د نړیوالو مرستو جلبول: ولسمشر غني د ملي یووالي حکومت په لومړیو کې د بهرني سیاست د تګلارې پر مټ، له افغانستانه د بهرنیو ځواکونو د ډېرې برخې له وتلو وروسته وتوانېد چې د افغان ځواکونو او بیارغونې په موخه، په ۱۳۹۵ هـ ش کال کې په وارسا او بروکسل کنفرانسونو کې د اروپایي هېوادونو او امریکا مرستې راجلب کړي.

[11] : د ولسمشر د ټاکنو تګلاره او بهرني سیاست، د BBC راپور، ۱۱/۸/۲۰۱۸.

**د وارسا په غونډه کې د ناټو مشرانو پریکړه وکړه چې د ۲۰۱۷ کال تر پایه به، خپل سرتیري په افغانستان کې ساتي او تر ۲۰۲۰ کال پورې به له افغان حکومت سره د افغان ځواکونو څخه د ملاتړ په موخه ۴,۵ ملیارد ډالره مرسته کوي. په بل اړخ کې، د بروکسل په غونډه کې د بیارغونې لپاره له افغان حکومت سره د ۱۵,۲ ملیارد ډالرو مرسته وشوه.**

**سولې ته د رسېدو په موخه د بهرني سیاست له لارې هڅې: د ملي یووالي حکومت پر مهال ولسمشر غني د بهرني سیاست لارې هڅه وکړه چې طالبان په یو ډول د سولې خبرو ته حاضر کړي. د ملي یووالي حکومت وتوانید چې د اسلامي نړۍ د دیني عالمانو غونډه په سعودي عربستان کې جوړه کړي او د مکې معظمې د امام له خولې په افغانستان کې د طالبانو روانه جګړه ناروا وبولي. د دې ترڅنګ، پر پاکستان د امریکا فشارونه هم هغه څه وو چې افغانستان یې له تېرې یوې‌نیمې لسیزې راهیسې په لټه کې و.**

**د بیت المقدس په قضیه کې د امریکا خلاف رایه کارول: افغانستان د ملګرو ملتونو سازمان په هغه بېړنۍ ناسته کې چې د امریکا له لوري د اسراییلو د پلازمینې په توګه د بیت المقدس د رسمیت پېژندلو په اړه جوړه شوې وه، د امریکا د دریځ خلاف رایه ورکړه او په دې توګه د ملي یووالي حکومت پر مهال ولسمشر غني د یوه اسلامي هېواد د ولسمشر په توګه خپل مسوولیت ادا کړ او په بیت المقدس کې یې د امریکا د سفارت له پرانیستلو سره مخالفت وکړ.**[12]

[12]: په تېرو څلورو کلنو کې د ملي وحدت حکومت بهرني اړیکې او سیاست، https:/ocs.gov.af ۱۳۹۸ه ش.

## د ګاونډیو او نورو هیوادونو سره د اړیکو د پراخولو لپــاره د ولسمشر غني ځینې مهم سفرونه

د پاکستان سفر: ښاغلي ولسمشر غني په لوړه کچه د مدیریت پر اصولو پوه او مجرب مدیر دی، مخکې له دې چې د پاکستان سره خبرې اترې پیل کړي، لومړی یې د پاکستان دوه قوي مربیان چې سعودي او چین وو په خبرو کې را ښکیل کړل او بیا یې له پاکستان سره خبرې په عملي توګه پیل کړې، د خبرو د پیل نه تر وروسته د پاکستان او افغانستان ترمنځ تر لسو وارو زیاته راشه درشه وشوه او پاکستان یې د مذاکرې مېز ته را کش کړ چې پایله یې د وروستی تفاهم نامې مطرح کول وو، کرزی او دده پلویانو د دغې تفاهم نامې لاسلیکول د افغانستان لپاره یوه ننګینه مسئله و بلله، حال دا چې کرزی په دیارلسو کلونو کی د پاکستان سره د داسې یو میکانیزم د جوړلو توانایې پیدا نکړه چې له عمله یې پاکستان د ترهګرۍ پر وړاندې مبارزې ته حاضر شي.

ملي وحدت حکومت او د کابل اسلام اباد اړیکي: په پاکستان کې د لومړي وزیر په توګه د عمران خان له راتګ او نوي حکومت رامنځته کېدو وروسته، د دغه هېواد د بهرنیو چارو وزیر شاه محمود قریشي افغانستان ته راغی او دا د عمران په مشرۍ د نوي جوړ شوي حکومت لومړنی جګپوړی پاکستانی چارواکی وه، چې کابل ته یې سفر وکړ.

قریشي کابل ته د سفر پر مهال د افغان ولسمشر او اجراییه رییس په ګډون له جګپوړو افغان چارواکو سره وکتل او په سیمه کې د امنیت او ثبات، د افغانستان او پاکستان د عمل پلان او د دواړو هېوادو ترمنځ د بې‌باوریو له منځه وړلو یې خبرې اترې وکړې.

**د ايران سفر:** افغانستان او ايران دوه لرغوني هيوادونه او نيږدې ګاونډيان دي. خو د دواړو هيوادونو په اړيکو کې د تېرو څو پېړيو پر مهال ډېرې لوړې او ژورې هم راغلې دي.

ايران د افغانستان يو مهم ګاونډی دی او په تېرو څو کلونو کې يې په افغانستان کې رول او نفوذ په بې سارې توګه ډير شوی دی.

ولسمشر غني د لوړپوړي پلاوي په مشري د ۱۳۹۴ه ش کال د وری د مياشتې په ۳۰مه نېټه ايران ته سفر وکړ او ددې هېواد له لوړپوړو چارواکو سره يې وکتل او د دواړو هېوادونو د اړيکو پر لا پراخولو او ښه کولو وغږېدل.

ددې سفر په دوران کې د افغانستان او ايران د بهرنيو چارو او لوړو زده کړو ترمنځ د ګډې همکارۍ په برخو کې، دوه تفاهم ليکونه لاسليک شول چې تهران او کابل به په يادوشوو برخو کې خپلې همکارۍ لا زياته وي.

حسن روحاني پدې ليدنه کې وويل چې تهران غواړي له افغانستان سره د اقتصاد،کانونو،صنعت او سوداګرۍ په برخو کې خپلې همکارۍ زياتې کړي او په ځانګړي ډول د چابهار بندر ترانزيټي لاره د ايران له زاهدان سره ونښلوي.

ولسمشر په دې لېدنه کې له ايراني چارواکو وغوښتل چې په ايران کې دي ټولو افغان کډوال ثبت او راجستر شي.

**افغانستان او هند:** ولسمشر له هند سره ډېر ښه روابط جوړ کړل او نوموړي هېوادونو ته بېلابېل وختونه سفرونه لرل، ډېر مهم سفر يې د ۲۰۱۵ ميلادي کال د اګست په مياشت کې وه چې هلته ولسمشر غني په سيمه کې د

**امريکايې ولسمشر ډونالډ ټرمپ د اعلان شوې ستراتيژي په هکله هم وغږېده. نوي ډيلي د افغانستان د امن او پراختيا لپاره د مرستې ژمنه وکړه.**

**پاکستان سره د سياسي او اقتصادي اړيکو له ترينګلتيا سره سم، ولسمشر له هند سره خپلو اړيکو ته پراختيا ورکړه او اټکل کيږي چې دا مهال هند د افغانستان تر ټولو ستر تجارتي شريک ګرځيدلی.**

**له ډېر پخوا راهيسې د افغانستان او هند تر منځ سياسي،کلتوري او اقتصادي اړيکې وې،کله چې د هند خاوره د اوسني پاکستان په ګډون د انګريزانو تر لاس او استعمار لاندې وه،هغه هېواد او خلک چې افغانستان ورسره په هماغه وخت کې د نورو په پرتله زياتې اړيکې لرلې.هغه د برتانوي هند دولت او د هند وګړي وو.کله چې هند په ۱۹۴۷م کال کې خپلواکې واخيسته افغانستان د هغو لومړنيو له ډلې و چې د هند خپلواک دولت يې په رسميت وپيژانده.**

**د ملي وحدت حکومت په منځته راتګ سره د افغانستان او هند ترمنځ اړيکو يو نوی رنګ خپل کړ.د پخوا په پرتله د دواړو دولتونو ترمنځ اړيکې لاسره نيږدې او پراخې شوې. مودي له ولسمشر سره په ليدنه کې د افغانستان بيارغونې ته د هند تياري وښوده او په پنځو کلنو کې يې دوو ميليارده دالرو ښځه زياته مرسته وکړه چې ددې مرستي زياته اندازه د ترانسپورټ، بريښنا، تحصيلي بورسونو، ترانزيټ، د پارلمان ودانې جوړول او داسي نورو برخو کې وه.** [13]

**روسيه او افغانستان: مسکو په تاريخي لحاظ سره هر وخت د افغانستان په اقتصادي او سياسي چارو کې دخيل و، د روسيې علاقه دې سيمې ته ۱۹**

---

[13] tolonews: هند ته د ولسمشر سفر او لاسته راوړنې، ۱۲/۳/۲۰۱۷.

پیړۍ ته راګرځي، هغه وخت چې روسي امپراطورۍ د لویې بریتانیا یا برتانیا کبیر سره په مرکزي اسیا کې مخامخ وه ددې لیکنې مقصد تاریخي پیښې نه دي. په دې حال کې زه دې حقیقتونو ته اشاره کوم چې د روسیې خارجي سیاست ژورتوب په دې برخه کې وپوهېدل شي. افغانستان د لومړي سر څخه د روسیې لپاره یو ګواښ او په عیني حال کې د نفوذ لپاره یو فرصت پاته شوی دی. دا عامل باید د دواړو اړخونو د اوسنیو اړیکو پوهیدو لپاره هم باید په نظر کې ونیول شي.

د شوروي وحشیانه جنګ په افغانستان کې په ۱۹۷۹ کال کې د روسې سیاسي نظامي نخبګانو په تاریخي حافظه کې پاتې شوي او افغانستان د ماتې، درد، تلفاتو او نورو کلمو سره ورته مترادف دی. په حاضر حال کې په روسیه کې ډېر نخبګان او سیاستمداران دې نتیجې ته رسیدلي دي چې افغانستان ته د ځواکونو ننوتل یوه خطا وه.

د روسیې نخبګان په افغانستان کې مدرن دولت ذهنیت نه ویني. یعنې د مسکو په نظر، په کابل کې رسمي مقامات مستقر نه وو او په پوره توګه خپل مالي ملاتړ یعنې امریکا پورې تړلي دي. د غرب او روسیې په اړیکو کې د نابودۍ بحران د افغانستان او روسیې اړیکو د نابودۍ لامل شوی دی.

کابل د واشنګتن په غوښتنه د روسیې ټولې طرحې مسدود کړي او ورڅخه لیرې پاتې کیږي. مسکو په عصبانیت سره دا کار په وړاندي غبرګون ښودلی او ټینګار کوي چې د افغانستان امنیت د روسیه د ملي ګټو لپاره ښه او بنا پردی، روسیه ددې نښتې څخه به لیرې پاتې نه شي.

په ۹۰ لسیزیه کې داخلي جنګونو کې روسیه په پوره توګه د افغانستان شمال خلکو نمایندګانو څخه جوړ ایتلاف څخه ملاتړ کول. روسیه په دې کار کې

**يواځې نه و؛ ايران، هند او مرکزی اسيا هېوادونه هم په فعال توګه د افغان ملي اقليتونو سره مرسته کوله. د طالبانو د ظهور راهيسي وضعيت کوم بدلون نه دی کړی. مسکو په ۲۰۰۳ کال کې دا غورځنګ تروريستي سازمان لېست ته داخل کړی دی. ولاديمير پوتين، د روسيې ولسمشر د ۲۰۰۰ کال په لومړيو کې د برهان الدين رباني سره په ليدنه کې وويل چې طالبان د هېواد سياسی ځواکونو کې کوم ځای نه لري. د ۲۰۰۱ کال سپتمبر ۱۱ نيټې تروريستي بريدونه د روسيې په اپوزيسيون کې خاص بدلونونه رامنځته کړه. مسکو د امريکا او ناټو تروريستي ضد عملياتو د ازادي پايدار په نامه څخه ملاتړ کاوه چې مقصد يې د القاعده شبه نظاميانو او تر يو حده پورې طالبانو له منځه وړنه وه. ولاديمير پوتين لومړنی کس و چې په دې برخه کې مرستې او همکارۍ وړانديز جورج بوش د امريکا هغه وخت ولسمشر ته ورکړ. سربېره پردې د روسيې خاص سرويسونه ،خاص اطلاعات د افغانستان واقعيتونو په اړه ارايه کړ. دا په افغانستان کې د روسيې کلي سياست دی.**

د ولسمشر غني لخوا په بهرني سياست کې روسيې او د هغه رول ته ډيره توجه ونشوه چې له همدې امله روسيې هم د دولت مخالفې ډلې او اپوزيسون ملاتړ وکړ.

د چين سفر: **ښاغلي ولسمشر يو خپل مهم کاري سفر چين ته په ۲۰۱۵ ميلادي کال کې ترسره کړ ، د سياسي او اقتصادي همکاريو تر څنګ يې د سولې د خبرو اترو لپاره چين نه د غوښې همکارۍ غوښتنه وکړه او په مقابل کې چين هم په اقتصادي برخه کې دوه مهمې وعدې ورسره وکړې، يو دا چې د کنړ پر سيند به د برېښنا يو لوی بند د ۱۴۰۰ ميګاواټو په ظرفيت جوړوي او دويم دا چې د تنګي ابريښم لاره به د افغانستان پر مخ پرانيزي، ترڅو افغانستان په**

اسانۍ منځنۍ اسیا ته لار پیدا کړي، چې دې دوو تعهدونو د پاکستان په ملا کې ټکونه را وایستل او د سولې د خبرو اترو لپاره یې پر پاکستان د فشار اچولو هوډ هم له ډاکټر غني سره وکړ.

افغانستان او چین ستراتیژیکه ملګرتیا او پر سیمه یې اغېزې:چین د سیمې هغه هېواد دی، چې په نورو هېوادونو کې استعماري موخې نه لري او له همدې کبله په ټولیز ډول د سیمې له هېوادونو سره دوستانه اړیکې هم لري. له تېرو څو کلونو راهیسې په ځانګړې توګه له ۲۰۱۴ راوروسته، چې له افغانستانه د بهرنیو ځواکونو ډېره برخه ووته، چین د افغانستان په لور پاملرنه زیاته کړه؛ دغه راز په افغانستان کې د ملي یووالي حکومت له جوړېدو راوروسته افغانستان هم چین ته په خپل بهرني سیاست کې ځانګړی ځای ورکړ.

د ملي وحدت حکومت په دوره کې د دواړو هېوادونو د جګپوړو چارواکو سفرونه او لیدنې کتنې زیاتې شوې ، چې په همدې لړۍ کې د افغانستان د ملي امنیت شورا پخوانی سلاکار محمد حنیف اتمر هم د چین د مرستیال ولسمشر په رسمي بلنه بیجینګ ته سفر وکړ او هلته یې د چین له جګپوړو سیاسي او نظامي چارواکو سره وکتل.

چین ته د حنیف اتمر سفر د نورو مسایلو ترڅنګ، د افغانستان او پاکستان ترمنځ د شته بې‌باوریو له منځه وړلو او د افغانستان په سوله او ثبات کې د پاکستان د صادقانه همکارۍ لپاره مهم و.

## د مرکزي اسیا هیوادونو ته سفرونه

د مرکزي سیا هېوادونه د افغانستان لپاره ځانګړی اهمیت لري، ځکه موږ له دې هېوادونو سره ګډې پولې لرو او کولی شو د دوی له لارې خپل ترانزیټ له چین سره ونښلوو چې بدبختانه په تېر کې په دې برخه کې د پام وړ کار نه دی شوی. خو د ملي وحدت حکومت له راتلو سره جمهور رییس غني وکولی شول له دې هېوادونو سره اړیکې پراخې کړي.

تاجکستان: د افغانستان د اسلامي جمهوریت جمهور رییس محمداشرف غني د ۱۳۹۶ ه ش کال د غبرګولي پر ۱۹ مه د تاجکستان جمهور رییس امام علي رحمان سره وکتل.

په پیل کې د تاجکستان جمهور رییس د تروریزم پر ضد په ګډه سیمه ییزه همکارۍ ټینګار وکړ، د دواړو هېوادونو مشرانو د دوه اړخیزو او سیمې د اړیکو د پیاوړتیا او پراختیا په ځانګړي ډول د اقتصادي، سوداګریزو، امنیتي، تروریزم سره د مبارزې او د سرحدونو د کنټرول د همکاریو په اړه بحث او خبرې وکړې.

د تاجکستان جمهور رییس وویل، موږ تیار یوو چې په ترانزیټي برخو کې په ځانګړي ډول د قرغزستان تاجکستان تر شېرخان بندر پورې د اورګاډي کرښې او همدارنګه د چین او ایران د اورګاډي کرښې همکاري وکړو.

د تاجکستان جمهور رییس د افغانستان دولت په رهبري د کابل پروسې کنفرانس جوړولو ملاتړ وکړ او هغه یې د سیمه ییزې همکارۍ د پیلولو او

سولې لپاره پیل وباله او ټینګار یې وکړ چې باثباته افغانستان د سیمې د ټولو هېوادونو په ګټه دی.

جمهور رییس غني د سیمې اقتصادي او ترانزیټي همکاریو کې د تاجکستان رول مهم وباله ویې ویل، افغانستان د لویو پروژو په ځانګړي ډول د کاسا ۱۰۰۰ پروژې تطبیق لپاره لازم تیاری لري.

هغه وویل، د کاسا ۱۰۰۰ او ټولو پروژو په عملي کولو سره د افغانستان او د دې پروژو د مسیر هېوادونو تر منځ زیاته همپالنه رامنځته کېږي او موږ د زیاتو پروژو د اجرا کېدو لېوال یوو هغه همدارنګه زیاته کړه، موږ له تاجکستان څخه افغانستان ته د زیاتې برېښنا د واردولو غوښتونکي یوو.

د تاجکستان جمهور رییس وویل، هېواد یې افغانستان سره په ټولو برخو په ځانګړي ډول د انرژۍ په برخه کې همکاري کوي او تاجکستان د سمنټو د تولید لپاره مناسب ظرفیت لري او په دې برخه کې تیار دی چې افغانستان سره همکاري وکړي.

د تاجکستان جمهور رییس څرګنده کړه، دا هېواد لېواله دی چې د افغانستان او تاجکستان د دوستۍ پنځه ویشتم کال په کابل کې ونمانځي د افغانستان او تاجکستان جمهور رییسان د دواړو هېوادونو تر منځ د اقتصادي او سوداګریزو مناسباتو په پیاوړتیا ټینګار وکړ.

## ترکمنستان:

ولسمشر اشرف غني د خپل حکومت دوران کې  د منځنۍ اسیا بالخصوص ترکمنستان سره اړیکې ښې کړې او څو ځله یې نوموړی هېواد ته سفرونه کړي یو سفر چې په ۲۰۱۷ میلادي کال کې تر سره شو،  د دواړو هېوادونو

د ولسمشرانو ترمنځ د ستراتیژیک مشارکت تړون لاسلیک شو ددې ترڅنګ د افغانستان او ترکمنستان د ولسمشرانو لخوا د ګډو همکاریو ګڼ سندونه هم لاسلیک شول، چې مهم یې د اورګاډي د کرښې په برخه کې د همکاریو سند و.

دغه راز یې د نفتو، ګازو، فرهنګي او ګمرکي همکاریو په برخه کې یو لړ هوکړه لیکونه لاسلیک کړل.

د افغانستان او ترکمنستان ترمنځ په ستراتیژیک تړون کې د دواړو هېوادونو ترمنځ په سیاسي، اقتصادي او امنیتي برخو کې د اړیکو پر پراختیا او غزولو ټینګار وشو.

ولسمشر له نوموړي هېواد سره په اقتصادي او سیاسي ډګر کې دواړه لوري، د ګمرکونو له لارې د صادراتو ،وارداتو او دیپلوماسۍ په برخه کې د اسانتیاوو د رامنځته کېدو او د افغانستان او ترکمنستان ترمنځ د هوا له لارې د خدماتو هوکړه لیکونه هم لاسلیک کړل، چې په دې کې د دواړو ګاونډیو هېوادونو ترمنځ الوتنې هم راتلې.

ولسمشر غني وویل: چې ترکمنستان چمتو دی چې افغانستان ته د صادراتو کچه تر پنځه برابره زیاتوالي تر څنګ د دواړو هېوادونو ترمنځ د سترو اقتصادي پروژو لکه د افغانستان د اورګاډي پټلۍ،هېواد ته د برېښنا د لېږد زیاتوالی او د اقینې بندر ته د غازو د لېږد پر نل لیکو پانګونه وکړي.

## ازبکستان:

له ازبکستان سره د اړیکو د ښه والي په موخه د ۱۳۹۶ ه ش کال د لیندۍ په ۱۳مه جمهور رییس ازبکستان ته سفر وکړ او له دې هېواد سره یې د اړیکو د نوي باب پرانستو په درشل کې تر ۲۰ زیات تړونونه او هوکړه لیکونه لاسلیک

کړل او د دې ترڅنگ له کابل څخه مخامخ ازبکستان ته الوتنې هم پيل شوې.

د افغانستان او ازبکستان تر منځ د دوه اړخيزو امنيتي او سياسي همکاريو پر پراختيا لومړني مذاکرات په ۲۰۱۷ ميلادي کال کې وشول او دواړو هېوادونو د امنيتي او اقتصادي همکاريو د پراختيا په موخه کمېسيونونه جوړ کړل.

د افغانستان د ملي امنيت شورا پخوانی سلاکار حنيف اتمر او په اقتصادي چارو کې د ولسمشر سلاکار ډاکټر همايون قيومي او ورسره پلاوي د ازبکستان په پلازمېنه تاشکند کې د دغه هېواد د بهرنيو چارو له وزير عبدالعزيز کاملوف سره په لیدنه کې د امنيتي او اقتصادي همکاريو پر ښه والي او پراختيا خبرې وکړې.

په دې لېدنه کې د ازبکستان د بهرنيو چارو وزير د دوه اړخيزو اړيکو د پراختيا او دوام په موخه امنيتي او اقتصادي همکارۍ مهمې و بللې.

نوموړي وويل: د ازبکستان دولت چمتو دی چې د پخوانيو اقتصادي همکاريو په دوام د نويو همکاريو باب هم پرانيزي.

چې د افغانستان ثبات د سيمې د ثبات او اقتصادي پرمختگ له پاره مهم دی او په وينا يې د امنيتي همکاريو دوام او پرمختگ د تروريستي ډلو د ځپلو او محوه کولو په لاره کې اساسي رول لري.

چې په دې دوه اړخيزو مذاکراتو کې د همکاريو د سند په رامنځته کېدو هوکړه وشوه او دغه سند د دواړو هېوادونو د ولسمشرانو د ليدنې پرمهال لاسليک شو.

**د دې ترڅنګ په سیمه کې له ترهګرۍ سره د مبارزې په موخه د مشترکې ستراتیژۍ په رامنځته کېدو هم هوکړه شوې وه.**

## قزاقستان:

**د افغانستان د اسلامي جمهوریت د جمهور رییس محمد اشرف غني او د قزاقستان د جمهور رییس نور سلطان نظربایوف په حضور کې د دواړو هېوادونو د اړوندو لوړ پوړو چارواکو له خوا طبیعي پېښو ته د رسېدو او فرهنګي همکاریو په برخه کې دوه سندونه لاسلیک شول.**

**هغه غونډه کې چې په ۱۳۹۴ ه ش کال د لړم د میاشتې په ۳۰ مه نېټه په دې اړه د قزاقستان په پلازمېنه استانه کې جوړه شوې وه جمهور رییس غني په خپله وینا کې وویل چې : نن افغانستان له قزاقستان او د مرکزي اسیا له هېوادونو سره د همکاریو ژمنه نوې کوي، ده زیاته کړه : پخواني شوروي اتحاد زموږ د ملتونو په منځ کې واټن پیدا کړی و، خو د دغو دوو ملتونو اړیکې چې تل پاتې فرهنګي همکاري سره لري ورځ تر بلې زیاتېږي او رینښتینی ثبوت یې د دواړو هېوادونو ترمنځ د فرهنګي همکاریو د سند لاسلیک کول دي .**

**جمهور رییس غني د قزاقستان د خپلواکۍ ، سوکالۍ او پرمختګ په برخه کې د جمهور رییس نور سلطان نظربایوف هلې ځلې وستایلې، زیاته یې کړه چې : د قزاقستان هڅې او بریالۍ تجربې موږ ته دا روحیه راکوي چې د خپل هېواد د ثبات او پرمختګ له پاره لوی او اساسي ګامونه واخلو.**

**محمد اشرف غني د افغانستان او قزاقستان همکارۍ څو اړخیزه وبللې او څرګنده یې کړه چې په اقتصادي برخه کې به د باوري ترانزیټ او سوداګرۍ**

سیستم د رامنځته کولو تر څنګ، په افغانستان کې د قزاقستان او د مرکزي اسیا د نورو هېوادونو پانګونه وهڅوي.

ده زیاته کړه چې د اغېزمن سیستم د منځته راتلو تر څنګ د سوداګرۍ او ترانزیټ په برخه کې په افغانستان کې د قزاقستان د پانګونې غوښتونکی یم، او موږ په دې برخه کې ټولې اسانتیاوې برابروو .

جمهور رییس طبیعي پېښو ته د رسیدنې په برخه کې د دواړو هېوادونو ترمنځ د همکارۍ دغه تازه سند د طبیعي پېښو او افتونو د زیانونو د کچې په کمولو کې ګټور وباله او زیاته یې کړه چې دا به زموږ د همکاریو د عطف ټکی وي.

نوموړي د دې تر څنګ چې د دواړو هېوادو تر مینځ یې همکارۍ د عطف ټکی وباله ، د طبیعي پېښو په اړه د مبارزې په تړاو یې د لاسلیک شوو سندونوپه برخه کې وویل چې : دې سند طبیعي پېښو او افتونو ته لاس رسی لا موثر کړ . جمهور رییس غني یاده کړه چې پراقتصادي همکاریو سربېره په افغانستان کې د قزاقستان بشري پانګونې مرسته کړې ده ، او همدا اوس په دغه هېواد کې یو شمېر افغان محصلان په لوړو زده کړو لګیا دي، او دا موضوع د دواړو هېوادو تر منځ د لا ډېرو کلکو اړیکو د ټینګښت له پاره مهمه ده .

جمهور رییس له ترهګرۍ او د نشه یي توکو پر ضد د مبارزې په برخه کې په ګډې او دوامداره مبارزې ټینګار وکړ او زیاته یې کړه چې زموږ عمده موخه د هر اړخیزو همکاریو په خاطر، د دواړو هېوادونو ترمنځ د مناسبې سیاسي فضا رامنځته کول دي.

محمداشرف غني وويل: تروريزم ښه او بد نه لرياو دغه شومه پديده دين، مذهب او سرحد نه پېژني. ده ټينګار وکړ چې په دې برخه کې ګډې مبارزې، اساسي تمرکز او پياوړې ارادې ته اړتيا ده.

جمهور رييس وويل چې: د افغانستان او قزاقستان خلک د سولې، ثبات، هر اړخيزې همکارۍ او پرمختګ غوښتونکي دي .

د هېواد جمهور رييس په پای کې د قزاقستان جمهور رييس نور سلطان نظربايوف ته په يو مناسب وخت کې افغانستان ته د ورتګ رسمي بلنه هم ورکړې وه .

## د قرغېزستان سفر:

د افغانستان د اسلامي جمهوريت جمهور رييس محمد اشرف غني او د قرغېزستان جمهور رييس سورونبای جين بيکوف د ۱۳۹۷ ه ش کال د غبرګولي په ۲۴مه نېټه پلازمينه بيشکک کې د دواړو هېوادونو د اړيکو د لا پراختيا، افغان سولې، ترهګرۍ ضد مبارزې او اقتصادي همکاريو په اړه بحث او خبرې وکړې.

د قرغېزستان جمهور رييس بيکوف ولسمشر غني ته د ښه راغلاست ترڅنګ د افغانانو په رهبرۍ او مالکيت د تلپاتې سولې د تامين ملاتړ وکړ او ويې ويل چې هېواد يې د تروريزم پر وړاندې د افغانانو د مبارزې قدرداني کوي.

هغه څرګنده کړه :قرغيزستان غواړي د افغان دولت له لارې په افغانستان کې له مېشت قرغېزيانو سره دوامدارې او حمايوي اړيکې ولري.

**ولسمشر غني او ښاغلي بیکوف په مختلفو برخو کې یو لړ تړونونه لکه تحصیلي، اقتصادي، ترانزیټي او نظامي همکاریو امضا کړل او دا یې د افغانستان او قرغېزستان لپاره د یو نوي باب پرانیستل یاد کړل.**

**ولسمشر غني د قرغېزستان د جمهور رییس او خلکو د ښې میلمه پالنې او له افغانستان سره د همکاریو قدردانۍ څخه مننه وکړه.**

## سعودي ته سفر:

**ښاغلی ولسمشر غني دوه ځلي سعودي عربستان ته ولاړ چې دواړه ځله یې عمره تر سره کړه او په بیت الله شریف کې یې دعا وکړه چې لوی الله دې د افغانستان ځوریدلی ولس او خاوره د کورنیو او بهرنیو منافقینو له منګولو خلاصه کړي، او وروسته یې د سعودي د مقاماتو سره په لیدو کاتو پیل وکړ او ترې ویې غوښتل تر څو د مربي په صفت د پاکستان لاس له افغانستانه لنډ کړي. همدارنګه یې د سعودي د بهرنیو چارو له چارواکو نه غوښتنه وکړه تر څو سعودي کې مېشتو افغانانو ته، په قانوني ډول او د افغانستان په پاسپورټ د کار کولو اجازه ورکړي چې ښاغلي کرزي په خپل دیارلس کلن حکومت کې داسې یو کار نه وو کړی. همدارنګه ولسمشر د عربستان او هوسیانو د لانجې په تړاو د سعودي عربستان ننګه وکړه، همداسې یو دریځ د افغانستان د خلکو د دیني ارزښتونو له مخې د عربستان، امریکا، پاکستان، ترکیې او یو شمېر نورو عربي هېوادونو په همغږۍ سره کولی شي افغانستان د مثبت ناپېیلتوب په دریځ کې د منځني ختیځ له ضلعې سره ونښلوي. د همداسې یو سیاست غوره کول کېدای شي د سولې په بهیر کې د عربستان او یو شمېر راډیکالو کړیو، په ځانګړې توګه راډیکالو ملایانو فعاله ونډه پیاوړې کړي او افغانستان کولی شي، له کفر سره د جګړې له لومړۍ کربښې څخه واېستل شي. دغه ډول**

سیاست، افغانستان له یو ناپېیلي هېواد له سیاست څخه، د یو تیري کوونکي هېواد سیاست ته وردننه کړ.

د عربي متحده اماراتو سفر: افغان ولسمشر محمد اشرف غني د ۱۳۹۷ ه ش کال د کب د میاشتې په ۲٦مه نېټه په یو رسمي سفر عربي متحده اماراتو ته ولاړ.

افغان ولسمشر د افغانستان او عربي متحده اماراتو ترمنځ د لومړي ځل لپاره د ګډو همکاریو کمېسیون رامنځته کړ، ددغه کمېسیون په لومړۍ غونډه کې د دواړو هېوادونو له لوري درې مهم تفاهم لیکونه لاسلیک شول.

ولسمشر سره د اماراتو دولت له افغانستان سره د اقتصادي او سیاسي اړیکو د پیاوړي کیدو لپاره دونیم سوه میلیون ډالرو مرسته اعلان کړه.

همدارنګه د افغانستان او متحده عربي اماراتو ترمنځ فرهنګي، پوهنې، ورزش،کانونو، انرژۍ او کرنې په برخه کې هوکړه لیکونه لاسلیک شول، متحده عربي امارات د هغو هېوادونو څخه دي چې په تېر کې یې هم افغانستان سره په بېلابېلو برخو کې د همکاریو اغېزناک تړونونه لاسلیک کړي وو.

عربي متحده اماراتو د افغان سولې له بهیره خپل ملاتړ څرګند کړ، عربي متحده امارات له پنځو کالو راهیسې له افغانستان سره د امنیت د ټینګښت، اقتصاد او بیارغونې په برخه کې د پام وړ مرسته وکړه .

## د افغانستان او ترکیې اړیکې:

د ترکیې او افغانستان د اړیکو په اړه همدومره بس ده چې وتلي ترکي سیاستوال احمد داوود اوغلو دا اړیکې «بېلګه اړیکې» وبللې او له ګډې پولې پرته «ګاونډي» او یو بل ته نیږدې هېوادونه بلل کېږي، ترکیه او افغانستان د دوه اړخیزو اړیکو اوږد تاریخ لري او دا اړیکې د تاریخ په اوږدو کې دوستانه

پاتې شوې دي. دا چې ترکیه اوسمهال نه یوازې د اسلامي هېوادونو په منځ کې، بلکې د نړۍ په کچه له ځواکمنو هېوادونو شمېرل کېږي او د افغانستان ترڅنګ د سیمې له هېوادونو سره هم ښې اړیکې لري، د دوی دغو ښو دوه اړخیزو اړیکو ته یې ځانګړی اهمیت وربښلی دی.

د دغو دوه اړخیزو اړیکو اهمیت په بېلابېلو وختونو کې د دواړو هېوادونو د چارواکو له سفرونو هم جوت دی چې وروستی(د اپرېل ۸مه ۲۰۱۸ نیټه) کابل ته، د ترکیې د لومړي وزیر بن علي یلدرم سفر و، نوموړي کابل ته د سفر پر مهال له ولسمشر غني، اجراییه رییس ډاکټر عبدالله او نورو افغان چارواکو سره وکتل او له اجراییه رییس سره یې په یوه ګډ خبري کنفرانس کې هم ګډون وکړ.

د ملي یووالي حکومت له جوړېدو راوروسته د افغانستان او ترکیې اړیکې یوه نوي پړاو ته داخلې شوې او ترکي ولسمشر رجب طیب اردوغان په خپل سفر سره دغه پړاو پرانیست.

اردوغان د ملي یووالي حکومت له جوړېدو کابو یوه میاشت وروسته د۲۰۱۴ اکتوبر په ۱۸مه نیټه کابل ته راغی. دا له نژدې پنځو لسیزو وروسته افغانستان ته د یوه ترکي ولسمشر سفر وو، او له بله پلوه اردوغان لومړنی بهرنی جګپوړی چارواکی هم شو، چې د ملي یووالي حکومت له جوړېدو وروسته یې کابل ته سفر وکړ په دغه سفر کې د افغانستان او ترکیې ترمنځ د ملګرتیا او همکارۍ ستراتېژیک تړون هم لاسلیک شو.

ترکیه هم د افغانستان جیوپولیټیک موقعیت ته په کتلو سره غوښتل چې په افغانستان کې اوږدمهال حضور ولري او له همدې کبله یې له ۲۰۱۴ کال وروسته هم په افغانستان کې د خپلو ځواکونو شمېر کم نه کړ او خپله د اردوغان په وینا، ترکیه په هغه هیواد کې چې له چین، ایران، پاکستان او د

**منځنۍ اسیا له یو شمېر هېوادوونو سره په ګاونډ کې پروت دی د اوږدمهال حضور په لټه کې ده.**

**له دې سره سره  د دواړو هېوادونو ترمنځ په اړیکو کې د بې باوریو زمینې هم رامنځته شوي، ځکه له یوې خوا د ولسمشر لومړی مرستیال جنرال دوستم په ترکیه کې په یو ډول د تبعید ژوند تېراوه او له بله پلوه د دوستم په ګډون له ترکیې څخه د څو تنو افغان سیاسیونو له خوا د ملي یووالي حکومت پر ضد یو ایتلاف هم اعلان شو.**

**د ملي یووالي حکومت له جوړېدو وروسته کابل ته د اردوغان د راتګ تر شا د جنرال دوستم د واک ته رسېدو قضیه هم مطرح وه او له همدې کبله، له حکومت سره د جنرال دوستم د اړیکو خرابېدو او ترکیې ته تبعید یې پر دغو دوه‌اړخیزو اړیکو هم خپل اغېز لرلی دی، افغان حکومت د دغې بې باورۍ د له منځه وړلو لپاره یو لړ ګامونه هم پورته کړل چې له دې جملې په فتح الله ګولن پورې د تړلیو  افغان ترک ښوونځیو د مدیریت قضیه هم د یادولو وړ وه.**

**ولسمشر اشرف غني هم دوه ځله ترکیې ته سفر وکړ لومړی سفر یې د ۲۰۱۵ میلادي کال د ډسمبر میاشت کې و، چې هلته یې د دواړو هېوادونو د سوداګریزې شورا په غونډه کې هم ګډون وکړ او دویم هغه یې د ۲۰۱۷ کال په ډسمبر کې د قدس په اړه د اسلامي هېوادونو د مشرانو په کنفرانس کې ګډون و.**

## **اندونیزیا:**

**د ۱۳۹٦ کال د سلواغې په ۹مه نېټه له لسګونو کلونو وروسته د اندونیزیا جمهور رییس افغانستان ته سفر وکړ، د نوموړي سفر د سولې په برخه کې ښکاره پیغام درلود او د افغانانو په مشرۍ یې د سولې له بهیر څخه د اندونیزیا په څېر د یوه غښتلي اسلامي هېواد ملاتړ وښود، دا سفر او دیپلوماتیکې اړیکې**

د دواړو هېوادونو ترمنځ له ۴۰ کلنو وروسته وشوې. دې سفر وښوده چې افغانستان په بهرني سیاست کې غښتلی مقام خپل کړی، د اندونیزیا جمهور رییس د افغانستان له سولې او ثبات کلک ملاتړ وکړ او د سولې په تړاو یې په دغه هېواد یوه ناسته ترسره کړه چې د اسلامي هېوادونو عالمانو په‌کې له افغان سولې ملاتړ وکړ او د افغانستان جګړه یې ناروا وبلله.

## د جاپان سره اړیکې:

ولسمشر د ۲۰۱٦ میلادي کال جاپان ته سفر وکړ چې له ولسمشر شینزو ابي سره په لیدنه کې یې د افغانستان لپاره د جاپان له پراختیایي پروژو، روزنیزو پروګرامونو او د سولې له پروسې څخه د نوموړي هېواد ملاتړ او همکاریو پرځرنګوالي او پراختیا خبرې وکړې. ولسمشر د جاپان له خلکو مننه وکړه چې په بېلابېلو پړاوونو کې د افغانستان له خلکو سره د پراختیایي پروژو په برخه کې همکاري کړې ده.

ولسمشر غني په ځانګړي توګه د افغان پولیسو د روزنې او وړتیاوو د لوړاوي لپاره د جاپان مرستې مهمې وبللې. ښاغلي ابي وویل افغانستان او جاپان د تاریخ په اوږدو کې مثبتې او رغنده اړیکې درلودې او ددې اړیکو پر پراختیا یې ټینګار وکړ ده افغان لوري ته وویل: چې هېواد یې د سولې له بهیر څخه ملاتړ کوي او ډاډ یې څرګند کړ چې د سولې بهیر د بریالیتوب لپاره به له افغان حکومت سره همکاري او همغږي پراخه کړي، دواړو لوریو د همکاریو پر پراختیا او دوام ټینګار تر څنګ د کابل پروسې او تاشکند کنفرانس د پریکړو د عملي کیدو او د څو اړخیزو میکانیزمونو له چارو څخه پر ملاتړ هوکړه وکړه.

د جاپان ولسمشر په افغانستان کې د شویو پرمختګونو له امله خوښي څرګنده کړه او ویې ویل د جاپان حکومت د ولسمشر غني په مشرۍ له هغو پرمختګونو

ځخه چې په تېرو څلورو کلنو کې شوي، خوښ دی او دغه پرمختګونه ورته مهم دي.
د جاپان ولسمشر له افغانستان سره د همکارۍ په موخه په بېلابېلو برخو لکه ،ښوونه او روزنه، اقتصاد، سياست، کانونه ،کرنه، سوداګرۍ او ترانزيټ برخه کې د هر ډول مالي او تخنيکي همکاريو مرستې ژمنه وکړه.

## د امريکا سفر:

ښاغلی ولسمشر غني د خپل ملګري ډاکټر عبدالله سره متحده اياﻻتو ته سفر وکړ او هلته يې د متحده اياﻻتو دواړو مجلسونو ته هر اړخيزه وينا وکړه، داسې وينا چې د متحده اياﻻتو په تاريخ کې امريکايي سناتورانو ته چا داسې وينا نه وه کړې، د دې وينا متن دومره امريکايي سناتورانو ته په زړه پورې او حيرانوونکی و چې وروسته له هر بند نه به امريکايي سناتوران په پښو دريدل او د لاسونو پړکهاری به يې ورته کاوه.
د ښاغلي ولسمشر وينا په ډير عالمانه انداز سره ترسره شوه چې په کې د افغانستان کورنی او بهرنی سياست په ډېر وضاحت سره بيان شو، د متحده اياﻻتو خلک او حکومت يې د افغانستان سره د مرستو د دوام لپاره يو ځل بيا ژمن کړل.
حال دا چې ښاغلی کرزی د افغانستان د ولسمشر په توګه په خپل وخت کې امريکايانو ته يو مداري او د دوه مخي سياست درلودونکی سياستمدار معرفي شوی وو، او په کراتو په بين المللي ميډيا کې د مداري او دوه مخي سياست درلودونکی سياستمدار په نوم نومول شوی و.
د افغانستان د اسلامي جمهوريت جمهور رييس محمد اشرف غني د۱۳۹۴ لمريز کال د وري په ۵مه امريکا ته د خپل رسمي سفر په ترڅ کې جمهور ريس بارک اوباما سره په سپينه ماڼۍ کې وکتل.

**په دغه کتنه کې دواړو لورو د دواړو هېوادونو ترمنځ په بېلابېلو برخو کې د همکاریو د پراختیا، د افغانستان د امنیتي ځواکونو د پیاوړتیا، د تروریزم پرخلاف د ګډې مبارزې، د سیمه ایزو همکاریو، له افغانستان سره د امریکا د اقتصادي مرستو او د سولې د بهیر په باب بحث او خبرې اترې وکړې.**

**همدا راز په دغه کتنه کې د ستراتیژیکو اوږد مهالو همکاریو د موافقه لیک او د دواړو هېوادونو ترمنځ د امنیتي او دفاعي تړون په چوکاټ کې د ګډو ژمنو په عملي کولو باندې ټینګار وشو.**

**بیا د افغانستان او امریکا جمهورو رییسانو په یوه ګډ خبري کنفرانس کې ګډون وکړ او د خپلو مذاکرو د نتیجو په باب یې رسنیو ته معلومات ورکړل.**

**جمهور رییس اوباما جمهور رییس غني او ملګري پلاوي ته یې د ښه راغلاست په ترڅ کې وویل: چې جمهور رییس غني او ډاکټر عبدالله عبدالله په خپل هېواد کې په سوله ایز ډول د واک لومړنی لېږد په ډیموکراتیک ډول ترسره کړ او اوس د ملي وحدت حکومت رهبري کوي چې د افغانستان د خلکو د تنوع، ژمنې او کلک هوډ منعکس کوونکي دي.**

**ده وویل چې: له ۱۳ کلونو وروسته په افغانستان کې د امریکا محاربوي ماموریت په مسوولانه ډول پای ته ورسېد او له دې وروسته د افغانستان امنیتي ځواکونه په خپل هېواد کې د سراسري امنیت د ټینګښت مسوولیت پخپله غاړه لري، دغه ځواکونه د خپل هېواد لپاره قرباني ورکوي او د هرې ورځې په تېرېدو سره لا نور هم غښتلي کیږي.**

**د امریکا جمهور رییس د ملي وحدت د حکومت له مشرتابه څخه د مننې په ترڅ کې وویل چې دغه سفر د دواړو هېوادونو ترمنځ په اړیکو کې د نوي فصل د پرانیستلو لپاره یو فرصت برابر کړ.**

بارک اوباما له افغانستان سره د امریکا د امنیتي همکاریو پر دوام باندې د ټینګار په ترڅ کې وویل چې موږ هڅه کوو ترڅو د افغانستان امنیتي ځواکونه وروزو، مشورې ورکړو، تمویل او تجهیز یې کړو.
جمهور رییس اوباما څرګنده کړه چې د ۲۰۱۵ میلادي کال تر پایه پورې به، د امریکا ۹۸۰۰ سرتیري په افغانستان کې پاتې شي.
بارک اوباما وویل چې: موږ د یو ځواکمن افغانستان لپاره خپلې اړیکې لا پیاوړې کوو او افغانستان باید په داسې ځای بدل نه شي چې له هغه ځایه تروریستي بریدونه ترسره شي، ده د افغانستان په مشرۍ د سولې له بهیر څخه د ملاتړ په ترڅ کې وویل چې جمهور رییس غني له پاکستان سره سولې ته د رسېدو په موخه کار کړی دی چې دا د سولې د بهیر د څارنې لپاره یوه مهمه چاره ده. افغانستان او امریکا موافقه لري چې طالبان باید خپلې اړیکې له القاعدې سره وشلوي، له تاوتریخوالي لاس واخلي، د افغانستان قوانین ومني او د ښځو د حقونو ملاتړ وکړي.
د امریکا جمهور رییس وویل: چې د افغانستان لومړۍ مېرمن رولا غني به له مېرمن میشل اوباما سره په ګډه په افغانستان کې د ښځو د حقونو د تامین لپاره هاند او هڅې وکړي.
جمهور رییس اوباما په دې باندې د ټینګار په ترڅ کې چې امریکا له افغانستان څخه خپل ملاتړ ته دوام ورکوي وویل چې په وروستیو کلونوکې د روغتیا او پوهنې او په نورو بېلابېلو برخوکې مهم بدلونونه رامنځته شوي دي او د امریکا حکومت هڅه کوي ترڅو خپلې مرستې د افغانستان د حکومت د لومړیتوبونو له مخې دغه هېواد ته وړاندې کړي، ترڅو له هغو څخه ګټورې نتیجې ترلاسه شي.
وروسته د افغانستان جمهور رییس محمد اشرف غني د خپلو خبرو په ترڅ کې د افغانستان له لوړ پوړي پلاوي څخه د امریکا د حکومت د مشرتابه د مېلمه

پالنې او هرکلي او همدا راز له افغانستان سره په بېلابېلو برخوکې د امریکا د متحده ایالاتو له مرستو څخه مننه وکړه.
جمهور رییس غني په افغانستان کې د ښځو د حقونو تامین ته د اشارې په ترڅ کې وویل چې اوس مهال په ښوونځیو او د لوړو زده کړو په بنسټونو کې درې میلیونه نجونې په زده کړو بوختې دي چې دا د افغانستان لپاره یوه ستره لاس ته راوړنه ګڼل کیږي. ده دې ته په اشارې سره چې د افغانستان په کابینه کې په سلو کې شل سلنه ښځې شتون لري وویل، داسې ورځ به هم راشي چې د افغانستان جمهور رییسه به یوه ښځه وي.
ده د هېواد د امنیتي ځواکونو له سربښندنو څخه د قدرداني په ترڅ کې وویل: زه خوښ یم چې دغه ټکی څرګندوم چې له افغانستان څخه د ۱۲۰ زرو نړیوالو ځواکونو په وتلو سره هیڅ ډول امنیتي تشه نه ده رامنځته شوې.
جمهور رییس غني څرګنده کړه چې افغانستان له تروریزم سره د مقابلې توان لري. تروریستان له اسلام څخه استازیتوب نه کوي ځکه چې اسلام هغه دین دی چې حقایقو، تمدن، همکارۍ او نیکو کارونو ته پاملرنه لري.
ده زیاته کړه چې تروریزم ازادي ښوونکي تشکلات نه دي، بلکې ورانونکي او وژونکي ډلې دي موږ باید له هغوی سره د مبارزې لپاره ګډه ژمنه ولرو.
جمهور رییس د دغې پوښتنې په ځواب کې چې له څه ډول انتظار سره امریکا ته راغلی دی او له کومو هیلو سره بیرته افغانستان ته ځي وویل: زموږ انتظار دا و چې د دواړو هېوادونو ترمنځ اړیکې لا ټینګې او د دوامدارو همکاریو لپاره، یو واضح او عملي لید لوری رامنځته شي او باید ووایم چې دغه تغییر رامنځته شوی دی.
جمهور رییس محمد اشرف غني زیاته کړه: نن د امریکا دولت افغانستان خپل د باور وړ شریک او اعتبار لرونکی همکار ګڼي او د هغه هېواد لخوا ترسره شوي تعهدات د کتنې وړ دي او د ۲۰۱۷ میلادي کال لپاره د افغانستان د

امنیتي ځواکونو د تمویل وړاندیز به بالاخره، څلور اعشاریه یو میلیارد ډالرو ته ورسیږي.

جمهور رییس غني د خپلو خبرو په دوام وویل چې تېره ورځ د دواړو هېوادونو ترمنځ د اقتصادي همکاریو یو نوی چوکاټ جوړ شو چې د امریکا ۸۰۰ میلیونه ډالره مرسته به، د اصلاحاتو د شرایطو له مخې د افغانستان د بودجې له لارې ولګول شي، خو له ټولو مهمه دا چې د امنیتي همکاري په ډول کې انعطاف رامنځته شوی دی او دغه انعطاف زموږ د امنیتي ځواکونو او خلکو د اعتبار سبب کیږي او په عین حال کې سیمې او نړۍ ته دا ثابتوي چې دغه همکاري لنډمهالې او ژر تېریدونکې نه دي، بلکې دوامدارې او د اعتبار وړ دي.

په دغه خبري کنفرانس کې جمهور رییس اوباما د دواړو هېوادونو ترمنځ د ستراتیژیکو همکاریو په اړه د یوې پوښتنې په ځواب کې وویل: موږ غواړو چې افغان امنیتي ځواکونه خپل فعالیتونه د افغانستان د امنیت د ټینګښت لپاره، د خپل هېواد د وسله وال پوځ د اعلی سر قوماندان په رهبرۍ ترسره کړي او زموږ موخه دا ده ترڅو مطمین شو چې د افغانستان د امنیتي ځواکونو یو قوي او همیشنی همکار یو.

د افغانستان او سویلي اسیا په تړاو د امریکا متحده ایالتونو ستراتېژي اعلان: د ډونالډ ټرمپ په مشرۍ د نوې ادارې له رامنځته کېدو وروسته، امریکایي ستراتېژي جوړونکو سره له نیږدې د ولسمشر د کار او هلو ځلو په پایله کې امریکا د افغان جګړې په تړاو روښانه او واضح ستراتېژي اعلان کړه، چې د افغان حکومت له لوري یې هم هرکلی وشو. په دې ستراتېژي کې د افغانستان دوامداره ملاتړ او د شرایطو پر اساس پوځـي پرېکړې هغه مهم ټکي وو چې عملاً یې د جګړې په ډګر کې، د افغانستان لویه لاسته راوړنه ثابتوله. دا د ملي وحدت حکومت د فعال بهرني سیاست لاسته راوړنه وه چې تر دې وروسته، د

ترهګرۍ په منشاء ډېر تمرکز کېده او دې ستراتېژي د جګړې ډګر د افغان ځواکونو په ګټه اړولی و. ددې ستراتېژي تر اعلان وروسته لاندې موضوعات تر پخوا ډېر پیاوړي څرګندېدل:

1. په پاکستان د فشارونو زیاتوالی او د ولسمشر ټرمپ له لوري د ترهګرو د ملاتړي په توګه د پاکستان تورنول

2. د افغان امنیتي ځواکونو اوږد مهاله ملاتړ او تر څنګ یې د هغوی د تجهیز لپاره پراخې هڅې

3. د ترهګرۍ پر ضد مبارزه کې د امریکایي او نړیوالو ځواکونو د مهالوېش نه ټاکل: چې له افغانانو یې اوږد مهاله ملاتړ ثابتاوه

4. د افغان حکومت په مشرۍ د سولې د هڅو ملاتړ

5. په اقتصادي برخه کې له افغان حکومت سره ګډ کار، څو افغانستان پخپلو پښو ودرېږي

6. او د خپلې ستراتېژۍ پراخول، څو په سیمه ییزه کچه افغانستان له روان حالت څخه د خلاصون حل لاره ومومي

## اروپا ته سفر

د افغانستان د اسلامي جمهوریت ولسمشر محمد اشرف غني د ۲۰۱٦ میلادي کال د جولای په ۸ مه  په وارسا کې، د ناټو سرمشریزې په حاشیه کې د اروپایي ټولنې د بهرنیو اړیکو له مشرې فدریکا موغیریني سره ولیدل.

په دغه کتنه کې دواړو لوریو د افغان کډوالو د ستونزو د اساسي حل، د اروپایي ټولنې او افغانستان ترمنځ د اقتصادي او سیاسي اړیکو پر ټېنګښت وغږیدل.

د اروپایي ټولنې ځانګړې استازې مېرمن فدریکا موغیریني په بېلابېلو برخو کې، د ملي یووالي حکومت کوښښونه او لاسته راوړنې د قدر وړ وبللې.

**هغې زیاته کړه: د امنیت د تامین، د ښځو د حقونو، د اقتصادي او لویو پروژو د تطبیق په برخه کې د ملي یووالي حکومت کوښښونو افغانستان ته د اروپایي ټولنې پام او باور ډېر کړی دی.**

**اغلې موغریني له افغانستان سره د اقتصادي همکاریو په موخه د بروکسل کنفرانس لپاره د تیاریو یادونه وکړه او هیله یې څرګنده کړه چې د افغانستان نړیوال متحدین به، په بروکسل ناسته کې له افغانستان سره د خپلو همکاریو ژمنې تازه کړي.**

**هغې وویل: په پام کې ده چې د بروکسل ناستې څخه یوه شپه دمخه د افغانستان او سیمې د پرمختګونو او اړوندو موضوعاتو په هکله هر اړخیز بحث وشي.**

**ولسمشر غني د افغانستان د لاسته راوړنو، په سیمه کې د اقتصادي همکاریو، انکشافي پروژو، پرمختګونو او شته فرصتونو په برخه کې د سیمې د هېوادونو د رول د څرګنتیا لپاره دغه وړ بحث مهم او ګټور وباله.**

**د اروپایي ټولنې استازې د نړۍ په بېلابېلو هېوادونو کې، د افغان کډوالو ستونزو ته په اشارې وویل د افغان کډوالو ستونزې ته باید قانوني او دایمي حل لاره ولټول شي.**

**جمهور رییس غني وویل: که یونان په ډله ییزه توګه افغان کډوال وباسي، نو دا کار به د کډوالو ستونزې نورې هم زیاتې کړي، د دې لپاره باید یو منظم پلان ترتیب او تطبیق شي.**

**همدارنګه جمهور رییس د اروپایي ټولنې د بهرنیو اړیکو له ځانګړې استازې څخه وغوښتل چې د افغانستان وضعیت ته په پام د افغان کډوالو د ستونزې د حل په برخه کې همکاري وکړي.**

**د افغان حکومت قوي بهرنی سیاست او اړیکو اروپایي ټولنه دې ته قانع کړه چې له افغانستان سره نوره دلچسپی هم وښیي او مرستې وکړي، هماغه وه چې اروپایي ټولنې د افغانستان لپاره درې سترې غونډې جوړې کړې .**

**۱- د افغانستان لپاره د بروکسل غونډه (۲۰۱٦ د اکتبر۵): بروکسل کې له افغانستان سره د مرستندويه هېوادونو او نړيوالو سازمانونو په غونډه کې له افغانستان سره د راتلونکو څلورو کلونو لپاره ټولټال ۱۵ اعشاريه ۲ ميليارده ډالره مرسته اعلان شوې وه.**

**غونډې ته د افغان ولسمشر محمد اشرف غني وينا: افغانستان د اقتصادي ودې، فساد سره مبارزې او بشري حقونو برخه کې پرمختګ کړی دی، خو هېواد يې په دې لړ کې د نړيوالې ټولنې رغنده ملاتړ ته اړتيا لري افغانان کولی شي سوله راولي موږ به سوله راولو موږ رغوونکي سياست ته ژمن يو، ويجاړوونکي سياست ته نه!**

**د غونډې پای کې د نړيوالې پرمختيا برخه کې د اروپايي ټولنې کميشنر نيوين ميميکا، د مرستو دغه کچه د پام وړ وبلله**

**د مرستو دغه کچه د ۲۰۱۲ کال توکيو کنفرانس له مرستو لږ توپير درلود، په هغه کنفرانس کې هر کال لپاره له افغانستان سره د ۴ ميلیارده ډالرو مرستې ژمنه شوې وه.**

**له غونډې مخکې داسې تمه کېده چې ښايي د يوه کال لپاره به د درې ميلياردو ډالرو ژمنې وشي، خو د غونډې په پای کې د ډېرو زياتو مرستو ژمنه ورسره وشوه چې دا د ملی وحدت حکومت د قوي ډيپلوماسي، بهرني سياست او د غونډې د ښه مديريت ښکارندوی وه. په دې غونډه کې له افغانستان نه غوښتنه وشوه، چې له فساد سره د مبارزې او اروپا کې د نه منل شويو کډوالو ستنولو برخه کې نور اقدامات وکړي.**

**د غونډې پر دويمه ورځ ولسمشر محمد اشرف غني وويل: تر راتلونکو درو کلونو پورې به افغانستان کې د اوبو د کنټرول او د بندونو پروژې پلې کړي. وړاندې ولسمشر غني ژمنه کړې وه چې تر راتلونکو پنځو کلونو پورې به**

**افغانستان کې ۲۱ بندونه ورغوي، چې پيل يې د هرات له سلما او د ميدان وردگو د چک له بندونو و.**

**اروپايي ټولنې په دغه غونډه کې له افغانستان سره د ۵ ميلياردو يورو پنځه اعشاريه شپږ ميلیارده امريکايي ډالره مرستې اعلان کړې.**

**د لويو مرستندويانو له ډلې بريتانيا، جرمني او هند هر يوه يو ميليارد ډالره مرسته اعلان کړه.**

**جاپان د پناه غوښتونکو او په کور دننه د بې ځايه شويو کسانو لپاره د ۵۰۰ ميليونه ډالرو تر څنگ افغانستان کې د پرمختيا لپاره د نورو ۴۰۰ ميليونو ډالرو مرستې ژمنه وکړه. په نورو مرستندويانو کې ترکيې ٦۰۰ ميليونه، پاکستان ۵۰۰ ميليونه، سعودي عربستان ۱۰۰ ميليونه او ډنمارک د ۲٦۰ ميليونو ډالرو مرستې اعلان کړی وې.**

**دغه راز ناروې ويلي وه: چې له افغانستان سره به د څلورو کلونو مودې کې هر کال د ۷۸ ميليونو ډالرو مرسته کوي.**

**د غونډې په جريان کې د اروپايې ټولنی د بهرنيو چارو مشري فيډريکا مورگيني وويل: مونږ به تر ۲۰۲۰ ميلادي کال پورې له افغانستان سره خپل ملاتړ ته دوام ورکړو، اروپايي ټولنه به له افغانستان سره وي.**

**د ملگرو ملتونو پخواني سرمنشي بان کي مون غونډې ته وينا کې وويل: له ټولو اړخونو غواړم چې افغانانو ته د کار او ښې حکومتولۍ زمينه برابره کړي، بې وزلي له منځه يوسي، په راتلونکې کې يو حساب ورکوونکی حکومت ولري او افغان حکومت هم د خپلو ستونزو هواري او د سولې راتگ په لومړيتوبونو کې راولي، افغان سوله سيمه ييزه همکاري غواړي.**

**د امريکا د بهرنيو چارو پخوانی وزير جان کېري غونډې ته وويل: افغانستان ته مې ډېر سفرونه وکړل، د سناتور او د بهرنيو چارو د وزير په توگه، د ملي يووالي حکومت مشرتابه د افغانانو ډېری ستونزې پخپلو کې سره حل کړي دي**

زه نن دلته د افغانستان د راتلونکې په اړه ډاډه یم، ځکه چې هر کال د افغانستان او نړیوالو ملګرو او شریکانو ترمنځ همکاري او ملګرتیا پیاوړې کېږي.

افغانستان او اروپايي اتحادیې دغه غونډه کې د ( مخکې پرته لار ) په نوم یوه هوکړه لاسلیک کړه چې په کې د هغو کډوالو په اړه ویل شوي چې په اروپايي هېوادونو کې یې د پناه غوښتنلیکونه رد شوي وو.

بل لور ته د اروپايي شورا مشر ډونلډ ټیسک وویل: اروپايي ټولنه تمه لري افغانستان به د هغو کډوالو په بېرته ستنولو کې ورسره همکاري وکړي چې د سیاسي پناه غوښتنلیکونه یې ناکامه شوي یا نه دي منل شوي.

۲- د افغانستان لپاره د جینوا غونډه(۲۰۱۸ د نومبر٦): جینوا کې د افغانستان د پرمختګ په اړه نړیواله غونډه، د ۲۰۱۸ میلادي کال د نومبر دمیاشتې په ٦مه نیټه پیل شوه چې دوه ورځې یې دوام وکړ، په دغه غونډه کې د افغانستان په ګډون د ٦۰ هېوادونو د بهرنیو چارو وزیران، مرستیالان او د ملګروملتونو په شمول د ۳۰ نړیوالو بنسټونو استازیو برخه لرله.[14]

جنیوا غونډه له بروکسل او وارسا غونډو وروسته د افغانستان لپاره مهمه بلل کېده.

د یادې غونډې لپاره د چمتوالي مسوولیت د افغانستان مالیې، بهرنیو چارو وزارتونو او افغانستان کې د مرستندویه ټولنې یا یونما درلود.

افغان ولسمشر محمد اشرف غني د غونډې څنډه کې د شخصي سکتور په تړاو یوه وینا کې وویل: کرنه مهمه ده په ځانګړي توګه په افغانستان کې، د ثبات لپاره او د کوکنارو د ګوابن د مخنیوي لپاره. خو کرکیله له مارکېټ موندلو پرته شونې نه ده او بریالي کېږي نه، زموږ پاملرنه د مارکېټ جوړولو ته ده او د دې لپاره اجنډا هم لرو.

---

[14]: سیال، حامد ، د ولسمشر بهرني سیاست او لاسته راوړنې یې، راتلونکي او لیکوال، ټاټوبي نیوز، ۱۳۹۹.

**د افغانستان موقعیت د راتلونکي لپاره سره زر دی زموږ د نړۍ نښلولو او دا ستراتیژیک موقعیت زموږ په ګټه تماميږي، زموږ پیغام نړیوالو ته د همکارۍ او ملاتړ دی.**

**موږ ځوانان لرو خو مخې ته مو خنډونه دي، له موږ سره همکاري وکړئ چې دا خنډونه له منځه یوسو او فرصتونه رامنځ ته کړو.**

**ښاغلي غني زیاته کړه: موږ اروپا کې د لویو پېرودونکو په شراکت پسې ګرځو کله چې تاسو زموږ توکي رانیسې دا یو تړون رامنځته کوي، او مانا یې دا ده چې ښځې او ځوانان قوت ومې یو په بل پسې داسې سکتورونه دي، له مخابراتو نیولې تر نساجي پورې داسې ساحې شته چې موږ ته د ټولو لپاره د ګټورو اړیکو ورتیا را په برخه کوي.**

**په دې غونډه کې افغان ولسمشر محمد اشرف غني نړیوالې ټولنې ته د شویو ژمنو په اړه معلومات ورکړل.**[15]

**د دغې ناستې هدف د نویو ژمنو ترلاسه کول نه، بلکې د هغو مالي مرستو په اړه حساب ورکول ول چې افغان حکومت په ۲۰۱٦ میلادي کال کې د بروکسل په غونډه کې تر لاسه کړې وې. تر څو د مرسته کوونکو هېوادونو او د مرسته کوونکو سازمانونو استازي غواړي پوه شي د دوي پیسې تر دې دمه د افغانانو ژوند تر کومه بریده بدل کړی.**[16]

---

[15]: په بهرني سیاست کې د افغان ولسمشر ترسره کړي کارونه، ویکیپېډیا.

[16]: له منځنې اسیا سره د ولسمشر تودې اړیکې، زما څېړنیزه مقاله، ۱۳/۳/۱۳۹۸.

# خلورم څپرکی

## د هیـواد اقتصادي وضعیت

ولسمشر غني ان د ټاکنیزو کمپاینونو پرمهال ولس ته ویلي وو چې بهرنۍ مرستې او بسپنې د اوږد مهال له پاره زموږ ستونزې نشي حلولی، نو د همدې لپاره یې له ولس سره یوه مهمه ژمنه دا وه چې واک ته له رسېدو وروسته به د افغانستان د کواکه او جنګ ځپلي اقتصاد د ودې لپاره پام وړ او اساسي کارونه کوي.

واک ته له رسېدو وروسته چې نړیوال ځواکونه له افغانستان څخه په وتلو وو، لومړي شپږ میاشتې ولسمشر غني خپل تمرکز په امنیتي وضیعت باندې زیات کړ. د همدې لپاره یې بهرني سفرونه وکړل، د امنیتي او دفاعي ځواکونو د تمویل او تجهیز لپاره یې د نړیوالو ژمنې تازه کړې؛ ځکه د ټولنیزو، انکشافي، اقتصادي او نورو چارو لپاره امنیت تر ټولو مهم و چې د افغانستان د بقا مسله ورپورې مستقیماً تړلې وه.

تر څو چې امنیتي وضعیت د ډاډ وړ نه وي، نو پانګوال او تاجران په افغانستان کې پانګونې او سوداګرۍ ته زړه نه ښه کوي او له دې بغیر اقتصادي وده ستونزمنه او ناشونې ده. د دې ترڅنګ یې د انرژۍ تولید ته هم پام ډېر کړ ، په دې برخه کې یې د کار او پانګونې ګڼ فرصتونه نړیوالو او ملي پانګوالو ته تشریح کړل او هغوی یې په دغو برخو کې پانګونې ته وهڅول. دا مهال د هېواد په داخل کې د ابي، لمریزې او بادي برېښنا د تولید په برخه کې ګڼې پانګې جذب شوي او لا هم د جذب په حال کې دي، ځکه ولسمشر برېښنا،

**زیربنا بولي او په هېواد کې د صنعت او اقتصادي ودې لپاره برېښنا د امنیت هومره اړینه او مهمه ده.**

**ولسمشر غني د همدې لپاره ټرانزیټي او هوايي دهلېزونو ته هم پام ډېر کړ، چې دا مهال افغانستان له ګڼو هېوادونو سره هوايي دهلېزونه لري، وروستی یې له چین سره پرانیست او د دغه دهلېز له لارې یې د افغانستان جلغوزي چین ته صادر کړل. ښاغلي غني د پکتیکا، پکتیا او خوست ولایتونو خلکو ته وویل: چې د دغو ولایتونو جلغوزیو ته به خاصه پاملرنه کېږي او ستاسو مسوولیت دا دی چې د جلغوزیو له ونو ځخه ساتنه وکړئ. همدارنګه د هوايي دهلېزونو له لارې به شااوخوا یو میلون ټنه افغاني توکي صادرېږي، چې تر دې دمه ۵۰۰ ټنه جلغوزي چین ته صادر شوي دي، دا د افغانستان په تاریخ کې لومړی ځل دی چې نړۍ ته یې هوايي دهلېز لاره پرانیستله.**

**همدا شان غني د لاجوردو لاره چې پخوا به یې ورته د ورېښمو لاره ویله؛ په هرات ولایت کې پرانیسته په دې سره یې یو تاریخي موقعیت بیا راژوندی کړ. اوس افغان تجاران کولی شي چې په اسانۍ سره خپل مالونه اروپايي هېوادونو ته صادر کړي او افغان حکومت په دې باور وه چې له دې لارې به، افغان محصولاتو ته بازارونه پرانیستل شي او سوداګري به ورسره اسانه شي.**

**ولسمشر غني په دې کارونو سره داخلي عواید زیات کړل، د افغانستان په لوېدلي اقتصاد کې یې یو ځل بیا تحرک ایجاد کړ او باوري وه چې په دې برخه کې به نور ډېر داسې پرمختګونه وشي چې د هېواد او خلکو د ژوند اوسنی وضعیت ورسره مثبت بدلون ومومي. ولسمشر غني له دې سره د افغانانو زړونه یو ځل بیا لاسته راوړل او کړې ژمنې یې عملي کړې.**

## اقتصادي وده

**له ۲۰۰۱ کال راهيسې تر ۲۰۱۲ کال پورې د افغانستان کلنۍ اوسط اقتصادي وده ۹ سلنه وه. په دغه ټول پړاو کې تر ټولو ښه کال ۲۰۰۹ کال و، چې اقتصادي وده په کې ۲۱ سلنه وه. خو له ۲۰۰۹ کال وروسته، اقتصادي وده په کمېدو شوه. په ۲۰۱۰ کال کې ۸,۴ سلنه، په ۲۰۱۱ کال کې ٦,۱ سلنه، په ۲۰۱۲ کال کې ۱۴,۴ سلنه، په ۲۰۱۳ کال کې ۱,۹ سلنه ،په ۲۰۱۴ کال کې بيا ۲ سلنه ،په ۲۰۱۵ کال کې ۲,۴ سلنه ،په ۲۰۱٦ کال کې ۲,۸ سلنه، په ۲۰۱۷کال کې ۳,۲ سلنه او په ۲۰۱۸کال کې ۳,۵ سلنه شوه.په ۲۰۱۴ ميلادی کال کې ملي بوديجه ٪۷۱ په بهرنيو مرستو تکيه وه او ۲۰۱۸ ميلادي کال کې ٪۵۱ وه همداراز ۲۰۲۴ ميلادي کاله پورې به د افغانستان د ٪۹ اقتصادي ودې او ۲۵ بيلونه ډالر GDP په جوړولو سره ملي بوديجه په خپله پوره کړي.حکومت ۲۰۱۸ ميلادي کال کې په بيسارې توګه زياته ٪۹۱ انکشافي بودجه لګولې.**

## د افغانۍ ارزښت

**د ملي وحدت حکومت په دوره کې د افغانۍ ارزښت ولې ورځ تر بلې کمېده، عمده لاملونه يې په لاندې ډول کېدلی شي.**

**پخوا هم د افغانۍ ارزښت د افغانستان د اقتصاد له کبله لوړ نه و، بلکې د افغانۍ ارزښت ډېری مهال مصنوعي بڼه درلودلې او افغانۍ به ډېری مهال پر ډالرو متکي وه.**

**سياسي او امنيتي بې ثباتي او کړکېچن حالت: په مارکېټ کې د افغانۍ تقاضا کمېدل له دې وړاندې ډېرو افغانانو له بهرنيانو سره کارونه کول او په بدل کې به يې تنخواوې په ډالرو کې ترلاسه کولې، دوي به دغه ډالر مارکېټ ته عرضه کول او له مارکېټ څخه به يې افغانۍ ترلاسه کولې؛ دې پروسې چې د افغانۍ**

تقاضا په کې شامله وه او ترڅنګ به یې افغان حکومت هم د افغانۍ د نرخ لوړولو په موخه کله کله مارکېټ ته ډالر عرضه کول، نو دې به بیا په مارکېټ کې د افغانۍ تقاضا ډېروله او د افغانۍ ارزښت به یې لوړاوه، دا چې ډېرې انجیوګانې یا تړل شوې او یا یې کارونه کم شوي وو، نو ورسره په مارکېټ کې د افغانۍ تقاضا راکمه شوې وه.

په نړیوال مارکېټ کې د ډالر نرخ لوړېدل او هېواد ته د بهرنیو مرستو کمېدل یې بل لامل وه.

## بې کاري

که څه هم په افغانستان کې د بې‌کارۍ په اړه کره او دقیق ارقام نه وو، خو په افغانستان کې تقریباً ۱۳ ملیونه خلک بې‌کاره او یا په کم مزد کار کاوه، چې د بې‌کارانو شمېره ورځ تر بلې زیاتیده.

په موقتي توګه د بې‌کارۍ د ختمولو لپاره اړینه وه، چې زراعت ته پاملرنه وشي، ځکه د افغانستان ډېری خلک له زراعت سره تړل شوي دي، د دې ترڅنګ د افغانستان د معادنو سکتور هم ډېرې وړتیاوې لري او په کارموندنه کې مهم رول لوبولی چې په ورستیو کې د بیکارۍ کچه یو څه راکمه شوه چې علت یې د ملي وحدت حکومت لخوا د کرنې پرمختګ، د سیمیزو لویو پروژو افتتاح او د کانونو ښه مدیریت و.

## صادرات او واردات

د افغانستان اقتصادي بنسټ د صادراتو له لارې پیاوړی کیدی شي، صادرات کولی شي چې هېواد د اقتصادي بحران نه وباسي کلونه وړاندې دخلق ډموکراتیک حکومت په وخت کې دافغانستان د صادراتو او وارداتو ګراف

**موازي روان و او هم د صادراتو لپاره حکومت جدي او بنيادي کارونه کړي وو، دبيلګې په توګه په منطقه کې منظم رقابت او دخپلو توکو لپاره يو خاص او ځانګړی نوم د صادراتي توکو، د ساتنې لپاره پرمختللي وسايل او ځايونه جوړشوي وو، د خلقيانو او له دې نه وړاندې حکومتونه په دې وتوانيدل چې دافغانستان دصادراتو لپاره بنيادي او اساسي کارونه ترسره کړي او هم د خپلو کورني توليدي توکو لپاره ښه بازارونه پيدا کړي.**

**په ټوله نړۍ کې هر حکومت او نظام غواړي چې اقتصادي بنسټ دصادراتو له لارې پياوړی کړي، هر هېواد دخپلو توکو او دکورني توليداتو لپاره منظمه بازارموندنه کوي او هم له نورو هېوادنو سره رقابت کوي، کله چې يو هېواد صادرات ولري، نو په هغه هېواد کې دکار زمينه ډيره وي، عام وګړو ته دکار زمينې د برابريدو ترڅنګ د هېواد د پيسو سياست هم ثبات لري او پيسه خپل ارزښت او مقام دټولې نړۍ د پيسو سره ځان برابر ګڼلی شي.**

**ولسمشر د صادراتو ملي ستراتېژي جوړه او توشيح کړه، افغانستان د ګاونډيو هېوادونو له اقتصادي انحصاره خلاص شو،۲۰۱۵ ميلادي کال کې صادرات ۵۱۴ ميليونه ډالره وه، ۲۰۱۸ ميلادي کال کې ۸۸۳ ميليونه ډالر او په ۲۰۱۹ کې ۱ ميليارد ډالرو ته لوړ شول، د ۲۰۱۴ په پرتله د هېواد صادرات۴۵٪ زيات شول، له مرکزي اسيا هېوادونو سره واردات ۹٦٪ زيات شول، د توليداتو د قاچاق مخنيوی وشو چې د هېواد غالۍ، زعفران، جلغوزي او ميوې نړۍ ته اوس د افغانستان په نوم صادريږي.**

## هوايي دهليزونه

**د ملي يووالي حکومت د هلو ځلو په پايله کې د افغانستان او هندوستان، قزاقستان، عربي متحده اماراتو، سعودي عربستان، ترکيې، قزاقستان او اروپايې**

**هېوادونو ترمنځ هوايي دهليزونه جوړ شول، د هوايي دهليزونو دکار په پيل سره افغانستان د ۲۰ ميليونه ډالرو په ارزښت صادرات درلودل، چې د صادر شويو محصولاتو ډېرى برخه يې کرنيز توکي ول، دغه دهليزونه د هېواد د توليداتو د صادرولو په برخه کې رغنده او اغېزمن رول لري، طبي بوټي، وچې او تازه مېوې، وطني غالۍ او د هېواد يو شمېر نور توليدات د هغو محصولاتو له ډلې څخه وه چې له افغانستان څخه د هوايي دهليزونو له لارې صادرشول. له دغو دهليزونو څخه ډېرى صادرکېدونکي توکي کرنيز توکي ول. له دې څخه هدف د هېواد د وطني محصولات ورپيژندنه نورو هېوادونو ته، د محصولاتو د ارزښت د زياتولو سبب او د توليد کوونکو د اقتصادي ودې سبب هم شو.**

**د صنايعو او سوداګرۍ وزارت په يو راپور کې وويل چې د افغانستان په صادراتو کې ۳۲ فيصده زياتوالی راغلی چې عمده دليل يې، د هوايي دهليزونو جوړيدل وو. کله چې نن د هند په سترو بازارونو کې د افغانستان زراعتي محصولات پيدا کيږي، دا ددې ښکارندوی دی چې د افغانستان حکومت له خصوصي سکتور څخه ملاتړ کړی.**

**هوايي دهليزونو د افغانستان په صادراتو ډېره اغيزه وکړه چې په کال کې د دغه هېواد د صادراتو کچه يو ميليارد ډالرو ته رسېده.**

## خصوصي سکتور او له کورنيو توليداتو ملاتړ

**د عامه يا دولتي سکتورونو په څنګ کې خصوصي سکتور او د هغه فعاليت ډېر مهم دی، د توليداتو په برخه کې د دولت سره په څنګ کې د کار قوې لپاره کار برابرول او ځينې نورو مهمو برخو کې د خصوصي سکتور ارزښت، د خصوصي سکتور تقويه کول او ورسره د اړيکو نيږدې ساتل او سهولتونه ايجادول په هېواد کې د اقتصادي ودې او پرمختګ د عواملو څخه دي.**

حکومت هم د خصوصي سکتور دا ارزښت درک کړی وو، نو ځکه د خصوصي سکتور او د عامه خصوصي ګډون تطبیق په ۵ کلونو کې د حکومت له نورو لومړیتوبونو او اقتصادي پروګرامونو څخه ګڼل کېده، د شهید سردار محمد داود خان د واکمنۍ څخه وروسته هېڅ حکومت په دې نه و توانیدلی چې د خصوصي سکتور سره نیږدې روابط ولري، دا لومړی ځل و چې د ملي وحدت حکومت د خصوصي سکتور سره دومره نیږدې اړیکې جوړې کړې، د خصوصي سکتور د وضعیت د ښه کېدو په برخه کې ډیرې هڅې وشوې او ښې لاسته راوړنې یې هم لرلي.

- د تولیدي فابریکو پر خامو توکو د تعرفې کمولو په موخه له کورنیو تولیداتو د حمایوي تعرفې د طرزالعمل د طرحې تصویب.
- د اقتصاد عالې شورا له لوري د عامه او خصوصي مشارکت چوکاټ جوړولو طرحې تایید
- د عامه او خصوصي مشارکت قانون توشیح او تنفیذ
- په تدارکاتو کې کورنیو تولیداتو ته ۲۵ سلنه ترجیح ورکو.
- په کابینې کې د سوداګریزو شاخصونو پلان منل
- له پانګونې د ملاتړ قانون تصویب
- د کورنیو صنایعو د ساتنې قانون تصویب

داپورته موارد هغه څه وچې د ولسمشر په لومړیو ۵ کلونو کې د صنعت د ودې لامل وګرځېدل.

## د خصوصي سکتور وده

د خان سټیل او میهن سټیل د اوسپنې ویلې کولو فابریکې پرانستل شوې، د اوسپنې په صنعت کې ۴۰۰ میلیونه ډالره پانګونه وشوه،۱۲ زره تنو ته د کار

کولو زمینه برابره شوه چې د هېواد ۷۰ سلنه اړتیا يې پوره کړې ده، د الکوزي د غیرالکولي مشروباتو فابریکه او د بزرگ افشان د جلغوزيو د پروسس او بسته بندي فابریکې پرانیستل شوې، د ملي اردو د خوراکې توکو لويه برخه اوس له داخلي تولیداتو برابریږي.
همدارنگه د نړيوال بانک د ۲۰۱۸ په نوملړ کې د سوداگري د اصلاحاتو په برخه کې افغانستان لومړی ځای خپل کړ.

## د نړیوالو مرستو جلب

تر اوسه لا افغانستان په اقتصادي برخه کې تردې حده نه دي رسيدلی چې خپله ټوله بودیجه او مصارف له کورنیو عایداتي سرچینو څخه تمویل او پوره کړي، ددې کورنیو عایداتي سرچینو د لگښتونو او بودیجې په برابرولو کې محدودیت، حکومت مجبوره کړی چې له بیلابیلو نړيوالو سرچینو په خاصه توگه له هغه هېوادونو څخه چې په اقتصادي لحاظه په ځان بسیا او پرمختللي دي مرستې ترلاسه کړي.
د افغانستان د ۱۳۹۸ کال بودیجه ۴۹ سلنه له خپلې کورنۍ عایداتي سرچینو څخه او ۵۱ سلنه چې نیمايي بودیجه کیږي، لا هم له نړيوالو مرستو برابره شوه.
د بهرنيو مرستو د ترلاسه کولو په برخه کې اړين اقدامات او د مناسبو پالیسیو تدوین لکه مالي او اداري اصلاحات او مناسب بهرنی سیاست ددې لامل شو چې ملي وحدت حکومت وکولی شوای چې د نړيوالې ټولنې پراخ مالي ملاتړ جذب کړي.
حکومت د خپلو هغو کوښښونو په لړ کې چې له نړيوالو مرستې جلب کړي، د وارسا او بروکسل په کنفرانسونو کې وتوانېدل چې د نړيوالې ټولنې۳ میلیارده

مالي مرسته ترلاسه کړي، همدارنگه په بروکسل کې تر ۲۰۲۰ م کال پورې د کال ۵ میلیارده ډالر او په بروکسل کنفرانس کې تر ۲۰۲۰ م کال پورې د ۱۵،۲۵۴ میلیارده ډالرو د ورکړې ژمنې وشوې.

## کرنه او مالداري

کرنه د افغانستان د اقتصاد مهمه منبع ده، ولسمشر غني د کمپاین پر مهال او له کمپاین وروسته د کرنې په برخه کې د بزگرانو سره زیاتې وعدې وکړې چې تر ډېره یې عملي هم کړې، دوديزه کرنه یې په عصري کرنه بدله بزگرانو ته یې اصلاح شوي تخمونه کرنیز ماشینونه او درمل توزیع کړل چې په دې سره کرنیز حاصلات هم زیات شول، ولسمشر غني د کرنیزو حاصلاتو د مارکيټ پیداکولو لپاره د هېواد دننه او بهر زیاتې هڅې وکړې چې تر ډېره بریده بریالی هم و. د مثال په ډول: ټولو وزارتونو او دولتي اداراتو ته یې امر وکړ چې د خپل هېواد د کرنیزو تولیداتو څخه استفاده وکړي ،د سیمې او نړۍ په کچه یې زعفرانو، جلغوزیو، پیستې، بادامو، ممیزو او داسې نورو وچو او تازه میوو ته مارکيټ جوړ او په نړیواله کچه یې مشهور کړل.

کرنه هم د ناخالصو کورنیو تولیداتو یوه مهمه برخه جوړوي، خو بدبختانه چې د اورښتونو کموالی او په تېرو دروو کلونو کې د طبیعې افتونو له وجې د کرنیزو محصولاتو کچه شاوخوا ۱۴،۲ سلنه راکمه شوه او دې د هېواد پر اقتصادي وضعیت سخت منفي تاثیر وکړ.

کرنه پر نورو اقتصادي اړخونو سخت تاثیر لري، ځکه له نورو اقتصادي اړخونو سره قوي اړیکې لري، په دې خاطر چې ۹۰ سلنه تولیدي صنایع په کرنیزو محصولاتو پورې تړلې دي، نو که چېرې کرنیز تولیدات او کرنیزې ځمکې ډېرې شي، په هغه اندازه به اقتصادي وده ډېره او چټکه شي او تر څنگ به یې ډیر کاري فرصتونه هم ورسره رامنځته شي.

له ۱۳۹۴ تر ۱۳۹٦ پورې د کرنې او مالدارۍ په سکتور کې ۲،۲۵ ميليونو کسانو ته کاري فرصتونه پيداشوي وو، د کرنې وزارت د شميرو له مخې دا مهال د بازار د اړتيا څه باندې۲۲ سلنه له کورنيو کرنيزو محصولاتو تامنيږي.

په ۱۳۹۵ کال کې د تازه ميوو صادرات ٦۹،۴ ميليونه ډالر او د وچې ميوو د ۱۸۲،۴ ميليونه ډالرو په اندازه و، په ۱۳۹٦ کال کې دا شميرې په ترتيب ۱۳۹،۵ او ۲۷۳،۴ ميليونه ډالرو ته لوړې شوې.

د ۱۳۹۷ کال د وچکاليو له امله دا شميره بيرته راټيټه شوه، خو له دې سره سره چې د غلو دانو په برخه کې د اورښتونو د کموالي له امله د کرنې سکتور منفي وده درلوده، خو ځينو برخو يې صعودي وده هم لرله.

د زعفرانو او جلغوزيو توليد او سوداګري: زعفران او جلغوزي د افغانستان په اقتصادي سياست کي کليدي کرنيز محصولات ګڼل کيږي، چې کولی شي ثابت اقتصادي او کاري بوختيا رامنځته کړي له همدې امله ددغه محصولاتو د ودې لپاره زيات کار شوی دی.

# اوبه

اوبه د ولسمشر غني د کمپاين شعار او دده د دورې ډېر ګرم عنوان و چې ولسمشر به پرې ټينګار کاوه، او اوبه يې د افغانستان عزت وګڼلې او بهرنيو هېوادونو ته هغه اوبه چې د نړيوالو قوانينو او معاهداتو له نظره هغه د همسايه هېوادونو نه کيدلې راوګرځولې او لوی لوی بندونه يې پرې جوړ کړل لکه د فراه بخش اباد، د نيمروز کمال خان او داسې نور چې دا لړی تر اوسه ادامه لري.

## د ۲۰۲۰ میلادي کال تر لومړیو پورې د بریښـنا بندونـه او د اوبو مدیریت

۲۰۱۴ کې د هرات سلما بند او د دایکندي سوختک بند بشپړ او پرانیستل شو.

د پنځو بندونو جوړول عملاً تر کار لاندې و: د بدخشان د شورابک، د کونړ ماڼوګي، د کابل شاه او عروس، د هرات پاشدان، د نیمروز کمال خان او د پکتیا مچلغو بند.

د ۷ بندونو ډیزاین تر کار لاندې و: ننګرهار کامې بند، لغمان ګمبیري بند، د کندهار دهلې بند، فراه بخش اباد بند، فاریاب دهنه دره بند، بلخ تنګې شادیان بند سمنګان ای کیلي بند.

د ٦ بندونو سروې تر کار لاندې وه: د هلمند کجکي بند دویم فاز، فاریاب المار بند، سرپل شورابه بند، سمنګان شاه عبدالله بند،کندز خان اباد بند.

د ۲ بندونو تخنیکي مطالعه تر کار لاندې وه:د کابل شاه توت بند او د بغلان بند.

د ولسمشر په لومړیو پنځو کلنو کې د اوبو ویش: د سلګونو نویو کانالونو، سربندونو، د اوبو ذخیرو، شبکو، پلونو او استنادي دیوالونو جوړول په کې شامل وه.په ۳۴ ولایتونو کې د سربندونو او د اوبو د کانالونو ۵۳۷ پروژې شبکې جوړې شوې چې ٦٦۰ زره کسان ترې برخمن شول. د کانال جوړونې ۲۸۵ نوې شبکې تر کار لاندې وې چې د ۱۲۲ زره هکتاره ځمکې خړوبولو ظرفیت لري. په ۳۴ ولایتونو کې د اوبوونې ۳۰۰ نورې شبکې په ۲۰۱۹ کال کې ګټې اخیستنې ته وسپارل شوې او ۵۰۰ زره کسان ترې ګټه اخلي. وروستیو کې په شمال کې د هېواد تر ټولو غټ کانال(خوشتیپې کانال)جوړولو قرارداد لاسلیک شو چې د ۵۰۰ زره هکتاره ځمکې خړوبولو ظرفیت لري.

## ترانزیټ

د ترانزیټي لارو د متنوع کولو په برخه کې د ملي یووالي حکومت د بل هر څه په پرتله، تر ټولو زیاتې لاسته راوړنې درلودې. په ۱۳۹۵ کال کې د افغانستان، ایران او هند ترمنځ د چابهار د ترانزیټي او سوداګرۍ تړون لاسلیک شو چې له مخې به یې افغانستان له نړۍ او هند له افغانستان او منځنۍ اسیا سره سوداګري د ایران د چابهار له لارې ترسره کوي د افغانستان، ترکمنستان، ازربایجان،جورجیا او ترکیې ترمنځ د لاجوردو لارې د تړون متن نهایي شو، د افغانستان او ترکمنستان ترمنځ د ریل کرښې جوړول پیل شول، د افغانستان د هرات او د ایران د خواف ترمنځ د ریل کرښې جوړولو عملي چارې پیل شوې، د افغانستان او چین ترمنځ د ریل له لارې سوداګري پیل شوه. د (CAREC) پروژې طرحه چې په واسطه یې د پاکستان ګوادر بندر وسلول له ازبکستان سره د افغانستان له لوري چې په دې سره به افغانستان نړیوالو اوبو سره وصل شي.

خو بیا هم په دغه برخه کې په رسمی توګه د لاجوردو لارې تړون نه لاسلیکېدل، د افغانستان او چین ترمنځ د ریل له لارې د سوداګرۍ په لاره کې له ازبکستان سره د ترانزیټ تړون نه شتون او په پای کې له دغه لارې له چین سره سوداګري تم کېدل هغه څه و، چې په دغه برخه کې نیمګړتیا بلل کېده.[17]

د چابهار بندر له لارې د هند سره سوداګري پیلول، د حیرتان بندر د ریل پټلۍ په واسطه د مرکزي اسیا هېوادونو سره نښلول، د هرات د تورغونډۍ او د فاریاب د اقینې بندرونه د ریل پټلۍ په واسطه د لاجوردو له لارې

---

17: 1397/8/7 د ولسمشر غني پنځه کلن حکومت اقتصادي لاسته راوړنې، د BBC جوړ شوي راپور.

ترکمنستان، ترکيې او اروپا سره نښلول، چين سره د ريل پټلۍ په واسطه د وريښمو لارې سره يو ځای کېدل، د نوي رادار سيسټم په فعاليدو سره د هېواد فضا څخه د تيريدونکو الوتکو فيس له ۳۰۰ دالرو څخه ۷۰۰ دالرو ته لوړيدل.[18]

## د اسيا په څلور لارې د افغانستان بدلول

د اسيا په څلور لارې د افغانستان د بدليدو لپاره د ملي يووالي حکومت پر مهال ولسمشر غني وتوانيد چې د يو شمېر ملي سيمه‌ييزو او نړيوالو انکشافي او اقتصادي پروژو عملي کارونه پيل کړي.

### کاسا زر پروژه

دا پروژه د مرکزي اسيا (قرغزستان،تاجکستان)څخه سويلي اسيا(افغانستان،او پاکستان)ته د بريښنا د ليږد پروژه ده چې ټول مقدار يې ۱۳۰۰ ميګاواټه ده ۳۰۰ ميګاواټه افغانستان او ۱۰۰۰ ميګاواټه پاکستان ته ليږدول کيږي، اټکل شوی وه چې له دې پروژې څخه به ۱۰۰۰۰۰ تنو ته په غير مستقيم ډول کار پيداشي او افغانستان به هر کال له ۸۸ څخه تر ۱۷۵ ميلونو ډالرو خالص عوايد ترلاسه کړي.

لکه څرنګه چې اټکل شوې وه، د کاسا زر پروژه کې به د پاکستان، افغانستان، تاجکستان او قرغېزستان هېوادونه وتوانيږي چې د سيمې په کچه د برېښنا د سوداګرۍ مارکېټ برابر کړي، کاسا زر پروژه به د افغانستان له لارې پاکستان هېواد ته ۱۰۰۰ ميګاواټه برېښنا ولېږدوي، په دې پروژې سره به د سيمې څلور هيوادونه د خپلمنځي ګډو ګټو په اساس سره وتړل شي.

---

[18]: د ملي وحدت حکومت اقتصادي پاليسې، ۱۳۹۲ ، نن ټکي اسيا.

دا پروژه کولی شي په سیمه او نړۍ کې د افغانستان نړیوال حیثیت او باور زیات کړي، یاده پروژه به د مرکزي اسیا له قرغېزستان او تاجکستان هېوادونو څخه چې د برېښنا د تولید خورا ډېر امکانات په واک کې لري او د اوړي په موسم کې ورته چندان اړتیا نه لیدل کیږي، د سوېلي اسیا پاکستان او افغانستان په هېوادونو وپلوري.

د کاسا زر پروژې اټکلیز لګښت ۱,۲ ملیارده امریکایي ډالره اټکل شوي. اټکلیز اوږدوالی یې ۷٦۵ کیلومتره دي، ۵٦۲ کیلومتره یې د افغانستان په خاوره کې تېریږي. د یادې پروژې په چوکاټ کې به په پلخمري ښار کې د ۳۰۰ میګاواټه برېښنا یک ټو بک سټېشن ورغول شي په رغولو سره به یې افغانستان وکولی شي له تاجکستان څخه د هغه شته ۲۲۰ کیلو ولټه لین له لارې برېښنا وپیري چې له تاجکستان څخه هېواد ته راغلي.

د کاسا زر پروژې تدارکاتي کارونه په ۲۰۱۷ میلادي کال د اکتوبر په میاشت کې بشپړ شول. او د ۲۰۱۸ میلادي کال په پیل کې یې د افغانستان د برخې رغنیزې چارې پیل شوې.

د برېښنا د لېږد دا ستره ملي پروژه کولی شي په سیمه کې د اقتصادي پرمختګ، سیاسي ټیکاو او د افغانستان لپاره د نړیوال باور زمینه برابره کړي. پاکستان چې د ګرمۍ په موسم او افغانستان د ژمي په موسم کې د برېښنا له کموالي سره لاس ګریوان وي، له دې لارې به وکولی شي خپله د اړتیا وړ برېښنا ترلاسه کړي.

د دې پروژې په پلي کېدو سره به په سیمه او څلورو هېوادونو کې د غربت مخه ونیول شي. د پلي کېدو په جریان او وروسته له هغه به د زرګونو دندو د پیداکېدو لامل شي، د سیمې اقتصادي چارې به ورځ تر بلې مخ په ښه کېدو شي او غربت به له منځه یوسي.

په افغانستان کې به ياده پروژه له ۷۰۰ کليو،۲۳ ولسواليو او (۷) اوو ولايتونو له لارې تېره شي، ياده پروژه به ۱۵۲۰۰۰ کورنۍ چې د دې پروژې په ۲/۲ کيلومترۍ کې موقعيت لري، متاثره کورنيو ته به د همدې پروژې پرمټ د ټولنې د ملاتړ د پروگرام ترنامه لاندې، د (۴۰) څلويښت ميليونه ډالرو په لگښت د کليو او پراختيا وزارت له لوري د خلکو له غوښتنې سره سم ټولگټې پروژې پلې شي، ترڅو هغه سيمې او کورنۍ چې د دې پروژې له پلي کېدو څخه اغېزمنې کيږي ورڅخه گټه واخلي.

د دې پروژې د (ټولنې د ملاتړ پروگرام) مسوليت د کليو او پراختيا وزارت پرغاړه لري او ياد پروگرام په فعاليت پيل کړی ده، دا پروگرام به د ملي پيوستون په څېر په هغو کليو او بانډو کې پلي کيږي چې د دې پروژې له پلي کېدو څخه اغېزمن کيږي، د دې پروگرام په چوکاټ کې به پام کې ده چې پلونه، پلچکونه، لارې، د اوبو واړه بندونه، استنادي ديوالونه او د برېښنا وړې پروژې په سيمه کې پلې شي. د (ټولنې د ملاتړ پروگرام) د هغې ارزونې په پايله کې چمتو او پلې کيږي چې د کاسا زر پروژې په اړه يې د نړيوالو مشورتي کمپنيو پرمټ معلومات راټول او دا يې غوره گڼلې چې بايد د دې پروژې ترڅنگ د سيمې خلکو ته هم د دې پروژې د پلي کېدو ترڅنگ کار وشي.

په ياده پروژه کې به تر ډېره بريده هڅه وشي ترڅو هغو کليو او بانډو ته چې دا پروژه ترې تېريږي ۵۰٪ سلنه د برېښنا د توليد وړې پروژې پلې شي ، د پروژې تر پوښښ لاندې ۷۰٪ سلنه کورنۍ به له ټولنيزو اقتصادي پروژو څخه برخمنې شي.

په يادو سيمو کې به تر ډېره بريده مسلکي او غير مسلکي کارکوونکي له هماغو سيمو څخه پر دندو وگومارل شي تر څو خلکو ته کاري زمينه برابره شي او د دوي د اقتصادي پراختيا په برخه کې به يو کوچنی گام واخيستل شي، د دې

**پروژې له اوږدمهاله ګټو څخه په لاسته راتلو سره به په یادو سیمو کې هغه صنعتي او زارعتي شرکتونه چې په اوس وخت کې د برېښنا له نشتون سره مخ دي او خپل کارونه په ډېرو ستونزو او لګښت سره ترسره کوي، له برېښنا څخه برخمن شي.**

**د یادولو ده چې د (ټولنې د ملاتړ پروګرام) یوازې په هغو سیمو کې پلي کېږي چې په کومو سیمو کې د کاسا زر پروژه پلې کېږي دا پروګرام لکه څنګه چې مخکې هم یادونه یې وشوه، د کلیو بیارغونې او پراختیا وزارت به یاد پروګرام د ولسی تړون (میثاق شهروندي) ترڅنګ پلې کوي.**

**د یادې پروژې په پلي کېدو سره به په سیمه کې سیمه ییزو وګړو ته په زیات شمېر کاري اوږدمهاله او لنډ مهاله کارونه پیدا شي، هغه پیسې چې د دې پروژې څخه په کلني ډول ترلاسه کېږي شاوخوا ۲ میلیونه ډالره به یې د همدې سیمې د بنسټیزو اقتصادي پروژو په پلي کولو ولګول شي.**

**دا چې له کاسا زر پروژې څخه په کلني اندول له ۴۵ څخه تر ۵۰ میلیونه ډالرو پورې ګټه ترلاسه کېږي که چېرې د برېښنا لېږد له ٦ میاشتو زیات شي کولی شي دا کلنۍ د لېږد حق تر ۱۰۰ میلیونو ډالرو پورې ورسیږي.**

**د ۱۳۹۵ کال د چنګاښ د میاشتې په ۱۵مه  ولسمشر محمد اشرف غني په تاجکستان هېواد کې د کاسا زر پروژې د غړو هېوادونو په ګډه ناسته کې ګډون وکړ نوموړي هلته وویل چې افغانستان غواړي د کاسا زر پروژې له لارې له ۱۵۰۰۰ څخه تر ۱٦۰۰۰ میګاواټه برېښنا د مرکزي اسیا له هېوادونو څخه د سوېلي اسیا هېوادونو ته ولېږدوي چې دا به د هېواد کلنی عاید د ګمرکاتو په کچه برابر کړي.**

## د ټاپي پروژه

ترکمنستان، افغانستان، پاکستان او هندوستان ترمنځ د ټاپي په نوم د پروژې په اړه په لومړي ځل ۲۵ کاله وړاندې فکر اونظر رامنځ ته شوی و، خو د ځینو تخنیکي، سیاسي او امنیتي ستونزو له امله د غازو د نل لیکې په دې پروژې د عملي کار پرانیستلو لړی وځنډېده. خو بلاخره د پروژې تړون په ۲۰۱۵ م کال کې لاسلیک شو، د پروژې د پیل نیټه ۲۰۱٦م او د پای کال یې ۲۰۲۰ وټاکل شو. د ټاپي په دې پروژې شاخوا ۱۰ ملیارده امریکایي ډالره لګښت اټکل شوی وه چې په څلورو کلونو کې به بشپړیږي. او ټاکل شوې وه چې دا نل لیکه به د ۲۰۱۹ کال په پای کې د غازو لېږد ته چمتو شي.

دا پایپ لاین یا نل لیکه ۱۸ سوه کیلومتره اوږدوالی لري، له ترکمنستان نه د افغانستان د هرات او کندهار له لارې او بیا د پاکستان د کوټې او ملتان څخه هندي پنجاب ته غځول کېږي.

دغه نل لیکه به یو کال کې د ۳۳ ملیاره کیوبک متره غازو د انتقال وړتیا لري. که د سیمې په کچه اقتصادي ګټې شریکې شي د سیاسي نانډریو په لرې کولو کې هم مرسته کولی شي.

## د افغانستان لپاره د ټاپي اقتصادي ګټې

مستقیمې ګټې: هر کال به پاکستان افغانستان ته د ټرانزیت په برخه کې سلګونه میلیونه ډالره ورکوي، افغانستان به هر کال د صفر اعشاریه ٦ ملیارده متر مکعب غازو څخه برخمن کېږي او په هغو سیمو کې چې دغه نل لیکه تېرېږي خلکو ته د کار زمینه برابره وي.

غیرمستقیمې ګټې: دا پروژه د ترکمنستان ، افغانستان، پاکستان او هندوستان د مشرانو لخوا پرانېستل شوه. له هغو سیمو نه چې دغه نل لیکه تېرېږي بې له شکه سوداګري به ورسره غوړېږي. په همدغه لاره به نورې ورته پروژې هم

**پلي شي دبېلګې په توګه د اورګاډي پټلی، د برېښنا پروژه او د انټرنيت فايبر کيبل. د دغې پروژې له برياليتوب وروسته به بهرني پانګوال دلته پانګونې ته هم زړه ښه کړي.**

## سيمه ييز اغېز

**د ټاپي پروژه نه يوازې افغانستان، بلکې د سيمې ټول هېوادونه له اقتصادي ګټو برخمن کوي. ترکمنستان اوس مهال ۳۵ ميلياړده متره مکعب غاز په چين پلوري خو چين دغه ګاز له ترکمنستان نه په ټيټه بيه اخلي، له همدې امله ترکمنستان غواړي پر چين تکيه کمه کړي چې وکولی شي خپل ګاز په مناسبه بيه وپلوري. هغه سيمې چې دا نل ليکه به ورڅخه تېرېږي هلته به کاروبار وغوړيږي هټۍ، هوټلونه، اوبازارونه به جوړ شي، ډېر ځايي وګړي به د نل ليکې د ساتنې په موخه په دندو وګمارل شي او ډېر خلک به په بېلابېلو دندو کې مصروف شي.**

**افغان مسلکي کارکونکي به د عصري مديريت زده کړو فرصت ترلاسه کړي.**

**پاکستان هم د دې پروژې نه اقتصادي ګټه پورته کوي. دغه هېواد به له هند نه هر کال سلګونه ميليونه ډالره د ټرانزيټي فيس په توګه ترلاسه کوي. د دې ترڅنګ په هغو سيمو کې چې دغه نل ليکه تېرېږي خلکو ته د کار زمينه هم پيدا کوی شي، ددې نه علاوه پاکستان به د ګازو نه هم برخمن کېږي.**

**د پروژې کار به څلور کالو کې بشپړيږي، په مستقيم او غير مستقيم ډول به لوی شمېر خلکو ته د روزګار پيدا کولو کې مرسته کوي.**

**هند چې د ګازو تر ټولو لويه ونډه يې اخيستله، د دې پروژې مهمه ستنه ګڼل کېده.**

## د ټاپي ملاتړي هيوادونه

د ټاپي سياله پروژه د اي پي اي يعنې د ايران، پاکستان او هند په نوم يادېږي، خو امريکا د ټاپي پروژې ملاتړې وه. چين هم د ټاپي ملاتړې برېښيده ځکه چې د دغې پروژې بريا په سيمه کې د دوي پر اقتصاد ښه اغيز درلودلی شو. روسيه هم ددغې پروژې مخالفت نه کاوه.

که څه هم د افغانستان ولسمشر محمد اشرف غني دا خبره رد کړه چې گواکې ايران له ټاپې پروژې نه دومره خوښ نه ښکاري، خو ويلي شو چې ټاپي پروژه د ايران اي پی اي پروژې مخه ډبه ولی شي.

## د لاړجوردو لار

څه د پاسه دوه زره کاله پخوا له دغې لارې د افغانستان د بدخشان لارجورد د منځنۍ اسيا هېوادونو او اروپا ته ليږل کېدل.

د لاجوردو لار د ۲۰۱۸م کال د دسمبر د مياشتې په ۱۳مه نيټه د ولسمشر غني له خوا په رسمي توگه، په هرات ولايت کې پرانيستل شوه چې ورسره افغانستان يو ځل بيا په سيمه کې خپل تاريخي موقعيت ترلاسه کړ او له يوه اوږده انتظار وروسته افغاني توکي په لاريو موټرو کې د لاجوردو په تاريخي لار د ترکيې په لوري وخوځېدل.

د لاجوردو ټرانزيټي لارې پرانستلو سره د جنگ ځپلي هېواد تجارتي اړيکې د اروپا او منځنۍ اسيا سره نورې هم سېوا شوې.

د لاجوردو دغه تاريخي ترانزيټي لار د هرات له تورغونډۍ او د فارياب د اندخوی له اقينې بندر پيل له ترکمنستان، اذربايجان، گرجستان او ترکيې څخه تيرېږي او ياد هېوادونه له اروپا سره نښلوي، دغه ترانزيټي اقتصادي پروژه د افغانستان د صادراتو لپاره يو ښه فرصت دی.

## د چابهار بندر

**چابهار بندر د ايران په سوېل ختيځ ايالت سيستان بلوچستان کې پروت دی. د ستراتېژيک موقعيت له مخې دغه بندر د عمان خليج پر غاړه، د هرمز ستراتېژيک تنگي ته نيږدې او د هند سمندر يوه برخه ده چې کابو ۱۴زره هکتاره مساحت او په لويه کچه په کې د لويو بېړيو چلېدنې او لنگر اچونې وړتيا لري.**

**په ۲۰۰۳ کال کې چې کله په هند کې د "بي جي پي" گوند حکومت و، د هند د لومړي وزير اټل بهاري واجپايي په دوره کې د ايران له حکومت سره، د دغه بندر جوړونې په اړه هوکړه‌ليک لاسليک شو. افغان حکومت هم د دغه هوکړه‌ليک برخه و، مگر پر ايران د نړيوالو بنديزونو له کبله د دغه بندر د پراختيا هوکړه وځنډېده.**

**د دغه بندر د هوکړې له ځنډېدو سره سره هند د زرنج دلارام سړک پر جوړونې کابو ۱۳۵ مليون ډالره لگولي چې د نيمروز ولايت مرکز له چابهار بندر سره نښلوي او کار يې په ۲۰۰۹ کال کې بشپړ شو. له بله پلوه ايران هم له ۲۰۰۳ کال راهيسې د چابهار په سوادگريز زون کې ۳۴۰ مليون ډالره پانگونه کړې ده.**

**دغه بندر اوسمهال په اوسط ډول په کال کې د ۲,۵ ميليون ټنه بار پورته کولو او خالي کولو وړتيا لري د ايران حکومت هڅه کوي چې د دغه بندر ظرفيت په کلني ډول ۱۲,۵ ميليون ټنو ته لوړ کړي. د دې ترڅنگ ايران له دغه ښار څخه د افغانستان تر پولې پورې د سړکونو او رېل کرښو جوړونې په ډگر کې هم ډېر کار کړی او همدا راز د سيمې نور هيوادونه هم هڅوي، څو په دغه بندر کې پانگونه وکړي.**

افغانستان، هند او ایران د ۲۰۱٦ میلادي کال په مې میاشت کې د اوبو له لارې د یوه نړیوال دهلېز پر جوړولو هوکړه وکړه او تر هغه وروسته د چابهار په رغنیزو چارو کې چټکتیا رامنځته شوه.
ولسمشر محمد اشرف غني له پاکستان سره د سوداګریزې راکړې ورکړې لړ کې له خنډ او ځنډ وروسته، د صادارتو لپاره چابهار ته توجه وکړه. اوسمهال د افغانستان او مرکزي اسیا هېوادونو ترمنځ د ریل شبکې له لارې ډېره راکړه ورکړه روانه ده.
د دغه بندر وروستی درې اړخیز تړون د ولسمشر محمد اشرف غني په هڅو، د ۲۰۱۵ او ۲۰۱٦ کلونو کې د ایران هند او افغانستان د تخنیکي اقتصادي ډلو او حقوقي متخصصینو له خوا چمتو شو او د ۲۰۱٦ کال د مې په ۲۳مه په تهران کې د درې واړو هېوادونو د مشرانو لهخوا لاسلیک شو.
په چابهار بندر کې درې داسې هېوادونه راټول دي چې له پاکستان سره، په یو نه یو ډول ستونزې او رقابت لري. په دغو هېوادونو کې مهم هغه یې افغانستان دی چې له تېرو څو لسیزو راهیسې له نړۍ سره د خپلې سوداګرۍ لپاره پر پاکستان متکي و. خو پاکستان بیا د افغانستان له دغې مجبورۍ څخه د سیاسي فشار د الې په توګه کار اخیستی او هر کله چې د کابل او اسلام اباد سیاسي اړیکې خرابې شوې، پر افغان ترانزیټ یې اغېزې ډېرې لیدل شوې دي.
په بل اړخ کې د هند او پاکستان دودیز رقابت او دښمني ده چې له امله یې پاکستان تل هڅه کړې، د هند او افغانستان ترمنځ خنډ واقع شي. ځکه اسلام اباد نه غواړي له افغانستان سره د ډیورنډ د لاینحل قضیې له کبله د کابل او ډهلي ایتلاف رامنځته کړي.

که څه هم ایران له پاکستان سره د افغانستان او هند په پرتله رقابت نه لري، خو د اقتصادي ګټو له کبله غواړي د هند او افغانستان ترمنځ او له نړۍ سره د افغانستان سوداګریزه راکړه ورکړه د ایران د چابهار له لارې وشي.

چا بهار یو له هغو بندرونو دی چې افغان سوداګر کولای شي خپل هغه توکي چې د سمندر له لارې په تېره بیا له هند څخه هېواد ته په لنډه توګه راورسوي او دغه راز د هند بازارونو ته خپل مالونه ورسوي.

چابهار بندر به مرکزي اسیا او هند سره، د ایران او افغانستان سیاسي او اقتصادي اړیکو وده کې کلیدي رول ولوبوي. زما په اند چابهار افغانستان او مرکزي اسیا ته د هندي محصولاتو لیږد لپاره، تر ټولو اسانه او ارزانه لارده چې دا هېواد په همدې توګه کولی شي د افغانستان او مرکزي اسیا هېوادونو بازار ته د پاکستان لاس لنډ کړي. ایران به هم د چابهار او ذاهدان ریل پټلۍ له لارې ۱،٦ میلیارد ډالر ګټه وکړي چې دا چاره به ایران له افغانستان او هند سره د ستراتیژیکو اړیکو ژوروالي او لا پراختیا ته اړباسي. افغانستان چې په وچه کې پروت هېواد دی له دې لارې به وکولی شي، خپل صادرات لوړ او هم د نورو هېوادونو د سوداګریزو توکو د ترانزیټ له لارې میلیونونه ډالر ګټه تر لاسه کړي.

د افغانستان ایران او هند ترمنځ جوړ شوي سوداګریز بندر چابهار نه په لومړي ځل د ۲۰۲۰م کال، د جولای په میاشت کې د افغان صادراتو ۳۹ کانتینرونه هندوستان ته واستول شول. چې په دغو صادراتو کې د افغانستان مختلف تولیدات شامل وو.

# د ټوټاپ د برېښنا پروژه

**ترکمنستان، ازبکستان، تاجکستان، او د منځنی اسیا ټول پنځه واړه هېوادونه غواړي چې له خپلې اړتیا اضافه ابي او ګازي برېښنا افغانستان او پاکستان ته ورکړي، دغه پروژه د پاکستان، منځنی اسیا او افغانستان ترمنځ مطرح وه او تمه وه چې تر ۲۰۲۰ میلادی کاله پورې عملي شي اسیایي او نړیوال بانک په دغه پروژه کې پانګونې ته لیوالتیا ښوولې او څه باندی ۵۰۰ میلیون ډالره لګښت لا د مخه ورته په پام کې نیول شوی دي او د دویم پړاو لپاره یې هم ۴۵۰ میلیون ډالره پلان شوی دي چې تر ۲۰۲۰ کاله پورې به یې ورکوي، ددغې بودیجې لپاره جاپان،برتانیا او د امریکا پرمختیایي اداری ټېر وهلی، د لنډ مهال لپاره د همدې پروژې پر اساس، افغانستان له ترکمنستان څخه ۵۰۰ میګاواټه برېښنا واخیسته، دغه برېښنا به د جوزجان، مزار، پلخمري او سالنګ له لارې کابل ته راوړل شي او له کابل څخه به یو په یوه لین کې د وردګو، غزنې او کندهار خواته ولیږدول شي او دویم لین به یې د لوګر له لارې تر پکتیا،خوست او پکتیکا پورې ورسول شي چې د لین غزولو کارونه یې په ۲۰۱۴م کال کې شروع شول.د افغانستان حکومت غوښتل په دویم پړاو کې له ترکمنستان څخه نوره برېښنا هم ددې پروژې پر مټ ترلاسه کړی او وکولی شی خپلې اړتیا ته په بشپړه توګه ځواب ووایي دغه پروژه د ۲۰۱۹ م کال تر اواخرو پورې بشپړه شوه. او افغانستان څه باندې ۲۰۰۰ میګاواټه وارداتي او تولیدي برېښنا ترېنه ترلاسه کړه،چې په دې توګه ددغه هېواد ۸۰ په سلو کې وګړي برېښنا ته لاس رسی پیدا کړ.**

**د ټوټاپ د پروژې چاره له ۲۰۱۴ ورسته جدي شوه د ۲۰۱٦ په لومړیو کې د ولسمشر غني لخوا د ټوټاپ د پروژې، د دواړو لارو ارزونه وشوه او د مې میاشت کې پریکړه وشوه چې باید دا پروژه د سالنګ پر لار تیره شي.**

## د ټاپ د برېښنا پروژه

دا د ترکمنستان ،افغانستان او پاکستان تر منځ د ۵۰۰۰ میګاواټه برېښنا پروژه ده چې په لویه کچه په سیمه کې له ترکمنستان څخه پاکستان ته د ټاپي د ګازو په خوا کې برېښنا لیږدوي دغه پروژه په ۲۰۱۵ م کال کې د ولسمشر اشرف غني لخوا په لومړي ځل مطرح شوه او د ۲۰۱۵م کال ددسمبر په ۹مه نیټه په عشق اباد کې هغه مهال د ټولو د پام وړ وګرځیده چې د ټاپي د عملي پیل تړون د افغانستان، پاکستان، ترکمنستان او هندوستان د مشرانو ترمنځ لاسلیک کیده. د ټاپ پروژې د برېښنا لینونه به له تورغونډۍ بندر څخه تر سپین بولدک پورې ۷۵۰ کیلومتره د افغانستان په خاوره کې تیریږي. په افغانستان کې د بریښنا ددغو لینونو د غزولو تړون د ۲۰۱۸ کال د نوامبر په ٦مه نیټه له یوه ترکي شرکت سره لاسلیک شو. له دې لارې به لومړي ۱۰۰۰ میګاواټه بریښنا پاکستان ته ولیږدول شي، تر څنګ به یې افغانستان د پاکستان بریښنا د ترانزیټ څخه شاوخوا ۱۰۰ میلیونه ډالر ګټه هم ترلاسه کړي.

## وارداتي او لمریزه برېښنا

په تېرو ۵ کلنو کې ۹ ولایاتو ته برېښنا ورسېدله چې بیلګې یې: لوګر، غزني، پکتیا، خوست، میدان وردګ او بادغیس ښارونه دي.همدا راز پنجشیر،کنړ، پکتیکا، بامیان، دایکندي، زابل، ارزګان،کندهار، غور، نورستان او نیمروز ولایتونو ته په وارداتي برېښنا رسولو کار روان دی. چې تر ۲۰۲۱م کاله پورې به د بریښنا د ملي شبکې په بشپړیدو سره د ټولو ولایاتو ښارونه بریښنا ولري. د سرخان پلخمري د برېښنا لاین تر کار لاندې دی چې پر مټ به یې ازبکستان څخه هېواد ته MW1000 برېښنا وارده شي. له ترکمنستانه د MW400 برېښنا واردولو باندې کار روان دی.

**CASA1000 پروژې له لاري به MW300 برېښنا وارده شي. وروستیو کې TAP500 پروژې پر مټ له ترکمنستانه MW1000 برېښنا واردولو تړون لاسلیک شو.تر راتلونکو ۵ کلونو به په کابل، ننګرهار،کندهار، مزارشریف او هرات کې MW2000 لمریزه برېښنا تولید شي چې په هر ولایت کې MW400 کیږي. ننګرهار ولایت کې د MW100 لمریزې برېښنا پر جوړولو کار روان دی. د مزار PP-50 میګاواټه او بیات MW40 له ګازو څخه د برېښنا تولیدول تر کار لاندې دي. همداراز د کندهار د MW30 لمریزې برېښنا جوړولو کار بشپړ او ګټې اخیستنې ته وسپارل شوه.**

# پینځم څپرکی

## په کلتوري او علمي برخه کې د ولسمشر لاسته راوړنې

### ښوونه روزنه او لوړې زده کړې

ښوونه او روزنه: ولسمشر غني د افغان ښوونځیو کیفیت او کمیت ته ډېره پاملرنه وکړه. ښوونځیو څخه وخت پر وخت څارنه شروع شوه، د خیالي ښوونکو او زده کوونکو لړۍ یې پای ته ورسوله، نوي ښوونځي یې جوړې او د پخوانیو ښوونځیو ودانۍ یې ترمیم کړې چې دا لړۍ تر اوس پورې دوام لري، د بې سوادۍ کچه ټیټه او د ښوونځیو د زده کوونکو په شمېر کې زیاتوالی راغی. هغه ښوونکي چې عمرونه یې لوړ او لسانس یې نه درلودل منفک او پر ځایه یې نوي لسانس ځوانان وګمارل شول. د ولسمشر غني دوره کې ۹۰٪ ښوونځیو نوي ځوان او لسانس ښوونکي پیدا کړل. د ولسمشر غني په دوره کې ۳٦۰۰ نوي ښوونځي جوړ او بیا ورغول شول. ولسمشر د ښوونځیو د نصاب د اصلاح لپاره هم وعدې وکړې چې په لومړیو پنځو کلنو کې عملي نشوي خو په دې هکله عملاً کار روان دی.

لوړې زده کړې: ولسمشر غني د لوړو زده کړو سیستم کې زیات تغیرات او شفافیت رامنځته کړو. د هېواد په پوهنتونونو کې یې د خیالي زده کړیالانو کچه صفر ته راښکته کړه. د کانکور د ازموینې او تعلیمي بورسونو سیستم یې ډیر شفاف کړ چې دا د افغانستان د پرمختګ او بقا لپاره یو ستر ګام و. د افغانستان په پوهنتونونو کې یې سیاسي جریانونه، مذهبي، سمتي، قومي،

نژادي او ژبني مخالفتونه او تعصبات ختم کړل، لوړو زده کړو وزارت او د هېواد پوهنتونونه يې غير سياسي او تعليمي مرکزونو په توګه خلکو ته وروپېژندل.

## نړیوال اسلامي پوهنتون

په ۱۳۹۱ه ش کال کې سعودي عربستان اعلان کړی و چې په افغانستان کې به د سیمې پر کچه یو ستر اسلامي پوهنتون جوړوي.

د ولسمشر فعال او متوازن بهرني سیاست وکولی شول چې د سیمې، نړیوالو هېوادونو او نړیوالو سازمانونو توجه راجلب کړي او په هېواد کې ددوې پر مټ نړیوالې او سیمه یزې پروژې عملي کړي چې له دغو پروژو څخه یوه په هېواد کې د سعودي عربستان په مرسته د دریم نړیوال اسلامي پوهنتون جوړول وو.

دغه پوهنتون د هېواد په ختیځ ننګرهار ولایت د رودات، کوټ او بټي کوټ ولسوالیو په منځنۍ ساحه کې پر زر جریبه ځمکه جوړیږي او نیږدې ۲۵۰ میلیونه ډالره لګښت پرې راځي چې د نړیوال اسلامي پرمختیایي بانک له خوا ورکول کېږي.

چې د دغه ستر اسلامي پوهنتون د جوړیدو عملي چارې په ۱۳۹۵ه ش کال کې پیل شوې. هند به د دغه علمي بنسټ د نصاب د جوړولو په برخه کې له افغان پوهانو سره مرسته کوي. دا پوهنتون به یوه لویه لیلیه، لوبځای، د اسلام اباد فیصل جومات ته ورته یو جومات هم ولري.

د ۱۳۹۵ه ش کال د لړم د میاشتې په ۲۰مه نېټه د نړیوال اسلامي پوهنتون د احاطې د جوړېدو د بنسټ ډبره کیښودل شوه. ددې پوهنتون د احاطې د جوړېدو لپاره د وزارت له انکشافي بودجې نه څه باندې ۳۷ میلیونه افغانۍ

منظورې شوي، دا پروژه نه یوازې د افغانستان بلکې د سیمې په کچه یوه لویه علمي پروژه ده.

ننګرهار اسلامي پوهنتون به د افغانستان لپاره، په خاص ډول د ننګرهار لپاره او د سیمې لپاره یوه لویه اکاډمیکه موسسه وي.

د دې پوهنتون نقشه په نړیوال سټنډرډ جوړه شوې او د راتلوونکو پنځلسو کلونو په موده کې به یې ټولې چارې بشپړې شي، او ددې پوهنتون جوړښت به له هر پلوه بین المللي وي.

په ټوله نړۍ کې دوه اسلامي نړیوال پوهنتونونه جوړ شوي چې لومړی پوهنتون په اسلام اباد کې دویم په مالیزیا کې او د درېیم ستر نړیوال اسلامي پوهنتون ویاړ به، د ننګرهار وي چې د رغېدو وروسته به په کې په یو وخت لس زره محصلین زده‌کړې کوي.

## د باچا خان نړیوال پوهنتون

ددې پوهنتون دطرحې د عملي کولو لپاره د ۲۰۱۳م کال څخه راپه دیخوا کار روان وه خو د یو څه مشکلاتو پر اساس د یو وخت لپاره وځنډیده او د دې پوهنتون جوړولو په لار کې څه تخنیکي او مالي خنډونه هم موجود وو چې ددې خنډونو د حواري لپاره د ولسمشر لخوا یو کمیسیون جوړ شو. ددې کمیسون دنده د پوهنتون جوړول او په خپلو پښو درول او د دې د پاره د مالي وسیلو راټولول وو. ولسمشر په افغانستان کې د امنیت او مالي ستونزو سره سره د باچا خان پوهنتون جوړولو پرېکړه وکړه او د دغه نړیوال پوهنتون د جوړېدو لپاره یې د خوست مرکز اړوند د صحرا باغ په سیمه کې شاوخوا درې زره جریبه ځمکه وټاکله. دا یو اوږدمهاله ستراتیژیکه علمي او د لوړو زده کړو پروژه ده چې جوړونه به یې وخت نیسي. د باچا خان پوهنتون به خپلواک وي او تدریسي چارې به یې په نړیوالو معیارونو برابرې وي او د دغه پوهنتون

**د محصلینو او استادانو د جذب شرایط به په نړیوالو شرایطو برابر وي، محصیلین او استادان به پر افغاني هویت محدود نه وي، بلکه په دغه پوهنتون کې به له ۲۲ څخه د ډېرو هېوادونو زده کړیالان زده کړې کوي. د باچاخان نړیوال پوهنتون به ۳۵ پوهنځي او ۱۲۵ تحصیلي څانګې ولري په دې پوهنتون کې به له ۳۵ څخه زیات څېړنیز مرکزونه جوړېږي، په نړیواله کچه به د سیمې په سیاسي، انکشافي، اقتصادي، شخړو حل، جغرافیه، چاپېریال، ښوونه روزنه، روغتیا، لرغونیز او نورو مسایلو او موضوعاتو د میلیونونو ډالرو په بدل کې څېړنې کېږي او نړۍ به له اړوندو مسایلو او فرصتونو خبروي.**[19]

**دغه پوهنتون به د سیمې ډیپلوماسۍ، سیاسي مسیر، ستراتېژیکې او اقتصادي لیدلورې په مساعدولو او ټاکلو کې رغنده نقش لوبوي او د دې پوهنتون په لارښوونه به په سیمه کې سولې او پرمختګ ته پالیسۍ او ستراتېژۍ ټاکل کېږي. په دې سربېره به دغه پوهنتون د سیمه یزو او نړیوالو شخړو په حل کولو کې کلیدي نقش لوبوي او د افغانستان حکومت ته به د سیمې او نړۍ له هېوادونو سره په روابطو جوړولو او د مسایلو په حل کولو کې لارښوونه کوي. باچاخان نړیوال پوهنتون به له دېرشو څخه تر څلوېښت زرو حضوري زده‌کړیالان ولري. چون نړیوال پوهنتون دی همدا علت دی چې له نیم څخه ډېر ښوونکي به یې نړیوال پروفیسوران وي. البته د وخت په تېرېدو سره به افغان دولت تر ۱۰۰۰ زیات افغان ښوونکي په نړیواله کچه د نړۍ پوهنتونونو ته ور وپېژني چې دوي هلته په نړیوالو ستندرډونو وروزل شي او بېرته هېواد ته له یو عصري ظرفیت سره را ستون او په دې نړیوال پوهنتون**

[19]: د باچا خان نړیوال پوهنتون ملي او نړیوال اهمیت /خان ولي خان بشرمل May 6, 2018.

کې تدریس وکړي، داسې به په دې پوهنتون کې د بهرنیو ښوونکیو شمېر را ټیټ شئ. البته دغه پوهنتون ته به له نړۍ څخه لوړپوړي چارواکې لکه وزیران، سفیران او د سترو نړیوالو ادارو مشران افتخاري لیکچرونو ته راځي او له دې پوهنتون سره به د خپلو مرستو تر څنګ خپلې تجربې هم شریکوي.
همدا ډول باچا خان نړیوال پوهنتون به په هېواد کې د موجوده دولتي او غیر دولتي پوهنتونونو او د تعلیمي ودې د څار بهیر په ښه والي کې هم رغنده نقش ولوبوي او د وخت په تېرېدو سره به، د داخلي او نړیوالو متخصصانو په مرسته د یو داسې تعلیمي نصاب د چمتووالي په برخه کې به نقش ولوبوي چې دغه نصاب د اکسفورډ او نورو نصابونو په څېر د تدریس په برخه کې نقش ولوبوي.
د دې ترڅنګ په ټولنیزو چارو، سوله، ولسواکي او انکشاف، محیطي زده کړو، معادن او جیولوجي، افغان پیژندنه، لرغونپوهنه، ټولنپوهنه او انسانپوهنه، مسلکي، تخنیکي او میخانیکې زده کړو همدا ډول د مالیکولر او بایوتیکنالوژۍ په برخو کې به په نړیواله کچه څېړنیز مرکزونه ولري چې له دې لارې به نه یوازې د افغانستان او نړیوالو مسایلو په څېړلو کې مرسته ترلاسه شي، بلکې په دې برخو کې به نوموړی پوهنتون د ارزښتناکې او حیاتي څېړنې په بدل کې تر میلیونو ډالرو پیسې ترلاسه کړي څو د دې پوهنتون دوام او حیثیت ثبات ومومي.
په تدریسي برخو کې به تر ټولو اړینې برخې د اسلامي فرهنګ او تمدن پوهنځي ترڅنګ د سولې او عدم تشدد، بشري حقوقو مطالعات، سیاسي علوم، جندر مطالعات، ټولنپوهنې، ټولنیز چوکاټونو، انکشافي پروژې، قبایلې مطالعات، تیکنالوژۍ او عصري علومو په برخه کې په سلګونه نور پوهنځي ولري.

که دا پوهنتون کامیاب شو نو د ټولې سیمې د پاره د امن پیغام راوړی شي. د افغان ولسمشر اشرف غني لخوا په خوست کې د باچا خان د نړیوال پوهنتون د جوړولو پریکړه، د پاکستان او افغانستان پښتنو لپاره ګټور ده او ورسره به د باچا خان عدم تشدد فلسفه هم خپره شي.

زما په اند په خوست کې د دغه پوهنتون جوړیدو سره د پښتنو د تعلیم اساسي مسله حل کیدی شي.

خوست د پښتنو د سیمې زړه دي، دې غاړې ته ترې په خیبر پښتونخوا کې نوې ورګډې شوې قبایلي سیمې هم پرتې دي، او دغه خلک هم ورته نیږدې دي او د دې اثر به د دواړو غاړو خلکو ته ډیر مهم وي او بیا نوم یې چې د باچا خان دي نو په نړۍ کې به هم اعتبار ولري. په کار ده چې د پوهنتون په نصاب کې د باچا خان بابا د فکر اساسي ټکي شامل کړای شي.

ولسمشر د ۱۳۹۹ه ش کال په لومړیو کې د باچا خان نړیوال پوهنتون لپاره څلور پوهنځي ١٦ دیپارټمینټونه منظور کړل.

## د ملي وحدت حکومت او د ملي ورځو نمانځنه

د ملي وحدت حکومت د افغانستان کلتور او تاریخي ویاړونو، خصوصاً د ملي ورځو په لمانځلو د تاریخي ابداتو او ځایونو په رغولو کې ډیرې هلې ځلې وکړې.

چې له جملې څخه یې د هېواد د خپلواکۍ د سلمې کلیزې او د بیرغ د ملي ورځې لمانځل و.

د ملي وحدت حکومت په دوره کې ټولې ملي او مذهبي ورځې د ولسمشر په امر او پام سره په ډېرو ګرمو او ښو مراسمو سره ونمانځل شوې لکه د خپلواکې ورځ، د ملي بیرغ ورځ، د شهیدانو ورځ، د عاشورا ورځ او داسې نور چې دلته موږ له یو څو څخه یادونه کوو.

زه د خپلواکۍ د ۱۰۰ مې او ۹۹مې کلیزې د نمانځنې شاهد وم، دا داسې یو ورځ وه چې د ملي او افغاني غرور څخه ډکه د یو ښه او راتلونکي افغانستان زیری یې ځان سره درلود. ټول ښارونه د بیرغ درې رنګه ټوټې پوښلي وو، ونو، دیوالونو دوکانونو، موټرونو او خلکو له بیرغونو جامې کړې وې.

زه دلته د خپلواکي د سلمې کلیزې د نمانځنې له مراسمو یاداوري کوم چې په ډېرو ښو مراسمو سره ونمانځل شول.

د افغانستان د خپلواکي سلمې کلیزې نمانځل: په ۱۹۱۹م کال کې افغانستان خپله ازادي د بریتانیا(انګلستان) څخه واخیسته، هغه خپلواکي چې ددې هېواد د زرهاوو شهیدانو په وینه لاسته راغلې وه. دې ازادي مبارزې، ایثار او پایداري ته اړتیا درلوده، که څه هم امان الله خان د خپل ترقي غوښتونکو ارمانونو لپاره د خپل مشروطه غوښتونکو یارانو په مرسته د استعمارګرانو سره په تقابل کی ودرېد او ویې ویل چې ترڅو د هېواد استقلال د استعمارګرانو څخه وانه اخلم، ارامتیا ته به ونه رسیږم د هغه دا حرکت د خلکو پراخ ملاتړ سره مخ شو. د خلکو د همراهی په ترڅ کې انګلیس ماتې وخوړه او افغانستان خپلواکي لاسته راوړه.

خپلواکي  په حقیقت کې تکامل د حکومت او خلکو اراده په اقتصادي، سیاسي،کلتوری، ټولنیز او نظامي برخو کې دي، ترڅو هیڅ خارجي اراده د ملت او دولت پر ارادې باندې اغېزه ونه لري او استقلال په دې مفهوم سره لاسته راځي.

دافغانستان د استقلال سلمه کلیزه د ملي وحدت حکومت لخوا په مرکز او ولایاتو کې په ډیرو شاندارو مراسمو سره ونمانځل شوه.

د افغانستان د سلمې کلیزې د نمانځنې لپاره افغان حکومت مالیې وزارت ته د ۱۳۹۸کال د جوزا د میاشتې په ۲۳مه نیټه امر وکړ چې د خپلواکۍ د بیا ګټلو

**سلمې کلیزې نمانځنې لپاره دې ۳۸۴ میلیونه او ۲۲۱ زره افغانۍ د ارگ د ۹۱ کوډ اکاونټ ته واستوي.**

**ولسمشر په دې اړه ماليې وزارت ته د جوزا په ۲۳ مه استولي حکم کې ويلي وو چې د افغانستان خپلواکي زموږ د اجدادو د لوی فکر استازيتوب کيسه کوي او نمانځنه يې د اوسني نسل رسالت دی.**

**افغان حکومت د خپلواکي سلمې کليزې ته ځانگړې کميسيون او دارالانشا وټاکله او گڼ پروگرامونه يې ورته ونيول.**

**حکومت په دې اړه ولايتونو کې هم له ولايتي شوراگانو، ښاروالیو، ولسي او مدني بنسټونو دارالانشاوې جوړې کړې وې.**

**ولسمشر غني په دې اړه حکم کې وزارتونو ته هم امر وکړ چې د ازادۍ د ورځې نمانځنه کې پوره ونډه واخلي.**

**ولسمشر غني د دغې ورځې د نمانځنې لپاره د ځانگړو ترتيباتو په لړ کې د غازي امان الله خان د واکمنۍ له وخته د راپاتې ودانيو د رغولو امر وکړ.**

**د هغه له وخته راپاتې ودانيو کې د پغمان ۲۱ ماڼۍ، دارالامان ماڼۍ، جلال اباد کې د غازي امان الله خان مزار،عيدگا جومات کارونه بشپړ او نورو ځايونو باندې چټک کارونه روان وو.**

**د افغانستان خپلواکي د اوسني وضعيت سره څومره معنی ورکوي او ايا اوس حقيقي استقلال لرو او که نه؟ هغه بله بېله موضوع ده چې بايد بيله وڅيړل شي، خو دا چې ولې د خپلواکي ورځ ښه ونمانځو او ښه تجليل کړو او کومې اړتياوې ايجابوي؟ ځينو نقاتو ته اشاره کوم:**

**۱: د افغانستان خلک په تېرو ۱۹ کلنو کې د تروريستي هدفمندو بريدونو قومي او مذهبي اختلافاتو منځته راوړنې لپاره د بريدونو شاهدان وو که دا مسله جدي ونه نيول شي، تروريستان او د هغوی ملاتړ کوونکي به په اسانۍ سره خپل خرابو مقصدونو ته ورسيږي، نو پر دولت باندې لازم دي تر څو دا**

**جدي ونیسي د افغانستان د خپلواکي ورځې نمانځلو په بهانې سره، دولت هڅه وکړی چې د حکومت او خلکو ترمنځ فاصله لنډه کړي او د خلکو ترڅنګ ودریږي او د تروریستانو نقشې له منځه ولاړې شي.**

**۲: د یو څه وخت راهیسې د ځوانانو په افکارو کې د خپلواکي غوښتنې او ازادۍ روحیه کمزورې شوې وه، نو دا اړتیا وه چې ددې ملي ورځو په نمانځلو سره، دا روحیه پیاوړې شي.**

**۳: د امریکا سره امنیتي نظامي بې ثمره پیمان امضاء شو چې د ځینو کسانو لپاره یو مهمه لاسته راوړنه بلل کیده، د نا امنیو په ډېریدو او ځینو ولایاتو سقوط، دا ښکاره کړه چې دا پیمان کومه ګټه نه درلوده او یواځې یو بې اساسه او پوچ پیمان وو او امریکا ته د یو با اعتماد شریک په حیث نه شو کتلی، نو یواځې څیز چې د افغانستان روښانه راتلونکي لپاره ورته اړتیا لیدل کېده، په هېواد کې ټولو وحدت پایو استحکام او داخلي توان باندې تکیه کول وه.**

**۴: د افغانستان خلک ددې خاورې او اوبو ساتنې لپاره ډېر رشادتونه د ځانه ښکاره کړي دي، لکه د انګلیس او طالبانو سره مبارزه. استقلال او خاورې سره مینه به د خلکو ملاتړ سبب وګرځي چې خلک د افغانستان امنیتي ځواکونو څخه ملاتړ وکړي ترڅو امنیتي ځواکونه هم د ملت په ملاتړ سره د تروریستانو په وړاندې په قاطع ارادې سره ودریږي.**

**۵: د استقلال څخه نمانځنه سربیره پردې چې همبستګي او هم پذیري پراخوي، ددې سبب هم ګرځي ترڅو خلک په هوښیاري او بصیرت سره د مادرن استعمار اهدافو څخه پوهه ترلاسه کړي او پرې نږدي ترڅو استعمارګران د هېواد داخلي چارو کې لاس وهنه وکړي او د وخت په تېریدو سره، د مداخله کوونکو لاسونه لنډ کړي.**

ددې تاريخي او ملي ورځې ارزښت ته په کتو سره، بايد دا ورځ هم په مجازي فضا او هم په حقيقي فضا کې ونمانځل شي او همدارنګه دولت هم د خلکو ترڅنګ ودرېږي او خلکو څخه ملاتړ وکړي.
ملي وحدت حکومت ځينې نورې ملي ورځې هم په ډيرو تودو او ګرمو مراسمو سره ونمانځلې د هغه له جملې اووم د زمري د ملي بيرغ ورځ،د شهيدانو ورځ او داسې نور.

## د ملي وحدت حکومت او د تاريخي ابداتو بيارغونه

ملي وحدت حکومت د تاريخي ځايونو د بيارغونې لپاره ډيرې هلې ځلې وکړې او ډير تاريخي ځايونه يې بياورغول او پر څو نورو کار روان دی هغه تاريخي ځايونه چې د ولسمشر غني په حکم او ځانګړې پاملرنې بيا ورغول شول جمهوري رياست(ارګ)، د دارلامان ماڼۍ، د عيدګاه جومات، د ننګرهار سراج العماره، د چهلستون بڼ، د غازي امان الله خان مقبره، د پل خشتي جومات،تاج بيګ ماڼۍ، د هرات اختيارالدين کلا، د پغمان بالا باغ، د جبل السراج شاهي ماڼۍ او داستالف ماڼۍ او هوټل .
او هغه تاريخي ځايونه چې د هغو د بيارغونې چارې د ولسمشر په لومړنۍ پنځه کلنه دوره کې بشپړې نه شوې او اوس دوام لري او نه دي بشپړ شوي شادوشمشيره جومات، د کابل بالاحصار، د کابل ماشين خانه، د باميانو بوت، د مزار شريف روضه، د هرات جامع جومات او د غور د جام څلی.

## د افغانستان جمهوري رياست (ارګ):

کابل تاريخي او لرغوني ښار د شاهانو او اميرانو ټاټوبی بلل کېږي. دغه ښار پخوا کلا ته ورته و چې د ځينو ديوالونو اثار او نښې تر اوسه هم پاتې دي. کابل ښار شپږ دروازې لرلې او هرې دروازې ځانګړی نوم درلود، په دهمزنګ

کې د کندهاريانو دروازه، دسردار جهان خان دروازه، د سلام خانې په برخه کې سپينه دروازه، د عيدگاه جومات شاته د پيت دروازه ، د بالاحصار خواته د گذرگاه او لاهوری دروازې لا هم ځينې سپين ږيري په خپلو خاطرو کې يادونه کوي.

د امير عبدالرحمن خان له واکمنۍ د مخه شاه د اوسېدو مناسب ځای نه درلود. د بادشاه د حکمرانۍ مرکز په بالاحصار کې و، خو بالاحصار او د شېرپور ارگ د افغان او انگليس په جگړو کې زيانمن شوي وو او ځينې برخې يې سوځېدلې وې. امير عبدالرحمن خان په ۱۸۸۰ کې واک ته له رسېدو وروسته د خپلې استوگنې او کاري دفتر لپاره مناسب ځای نه درلود. هغه د بادشاه د اوسېدو د مناسب ځای جوړولو لپاره د ارگ اوسنی موقعيت انتخاب او په ۱۲۹۹ ه ق کال يې د ارگ نقشه طرحه کړه. په ۱۳۰۰ ه ق کال د کابل ښار په مرکز کې پر دوه سوه جريبه ځمکه د ارگ د جوړولو چارې پيل شوې.

د ارگ د جوړولو چارې په ۳۰ کالو کې بشپړې شوې. کابو يوه نيمه پېړۍ کېږي چې د ارگ کلا په کابل کې جوړه شوې. په ارگ کې لومړنۍ جوړه شوې ودانۍ کوټې باغچه ده چې په ۱۳۰۴ ه ق کال يې د جوړولو چارې بشپړې شوې. د ارگ د بېلابېلو ودانيو د جوړولو لپاره ځيني توکي له بريتانوي هند څخه هم راوړل کېدل، خو تر ډېره له سيمه ييزو ودانيزو توکو استفاده کېده. دا ودانيز توکي خښتې، چونه، گچ، صندل او ساروج وو، په ځينو ودانيو کې له شېدو، کوچو او د چرگانو له هگيو څخه هم استفاده شوې ده.

دغه راز د ارگ د جوړولو په چارو کې د کابل زيات شمېر خلکو په خپله خوښه برخه اخېسته. د اوسنې ارگ سيمه پخوا خاورينه دښته وه. په ځينو

برخو کې يې کرنيزې ځمکې او باغونه وو. اوس ارګ د کابل ښار په مرکزي برخه کې موقعيت لري.

د حبيب الله کلکاني د حاکميت لنډه موده او د کورنيو جګړو پرمهال ارګ ته زيات زيانونه واوښتل. د ارګ پر چور او تالان سربېره ځينې ودانۍ هم زيانمنې شوې، په مشخص ډول کولی شو د موزيم يادونه وکړو چې د اماني نهضت پر مهال په ارګ کې جوړ شوی و.

د جمهور رييس محمداشرف غني په رهبرۍ د نوي حکومت په ايجاد سره د ارګ د بيارغاونې او نويو ودانيو د جوړولو بهير دوام وموند. د ارشيف د ودانۍ د جوړولو چارې په ۱۳۹٦ ه ش کال کې پای ته ورسېدې او د ارګ د ارشيف اسناد ور ولېږدول شول.

## دارالامان ماڼۍ:

د دارالامان ماڼۍ د افغانستان له تاريخي يادګارو له جملې څخه ده چې د کابل ښار له مرکز نه تقريباً اته کيلومتره جنوب لويديز لوري ته د چهاردهي په ساحه کې د دارلامان د عمومي جادې په انتها، د قورغ د غره په لمنو کې د « تاج بيګ » ماڼۍ ته نيږدې د مرحوم غازي امان الله خان په وخت کې جوړه شوې ده. د دارلامان د ماڼۍ د جوړېدو په وخت کې د افغانستان او المان ترمنځ ښې سياسي اړيکې وجود درلودې. د «جوزف برکس» په ابتکار د ښارونو او کور جوړولو په برخه کې د المان د دولت ۲۲ تنه مهندسان او انجنيران کابل ته راغلل او د دې قصر په جوړولو کې ۷۰۰ افغان کارګرانو برخه درلوده. د دې ماڼۍ د جوړولو کار د « والتر هارتن » په نوم الماني انجنير په ۱۳۰۴ ه ل کال کې پيل کړ او په ۱۳۰٦ ه ل کال کې يې کار تکميل شو. نوموړی قصر له ۱۵۰ وړو او لويو اطاقونو نه تشکيل شوی چې د اماني دورې ټولو دولتي دستګاوو له هغه نه استفاده کوله.[۲]

تاریخچه: د دارلامان ماڼۍ د۱۳۴۷ ه ل کال د قوس په ۲۲ مه نیټه چې د ۱۹۶۸م کال سره برابر ده او د وخت د فواید عامې یا ټولګټو وزارت په کې واقع و، د برېښنا د شارټي له امله یې دریم منزل سوځېدلی وه چې بیرته ترمیم شوه او وروسته د وخت د عدلې وزارت ترې استفاده کوله. د سردار محمد داود خان د ۱۳۵۵ کال د اساسي قانون د تصویب لویه جرګه په دې قصر کې جوړه شوي وه. د حفیظ الله امین په واکمنۍ کې د هېواد د جمهوري ریاست دستګاه یوځل بیا د دارلامان قصر ته ولیږدول شو، ترڅو د ۱۳۵۸ کال د جدي په ٦ مه د شورویانو د یرغل په وخت کې ماڼۍ اور واخیست .

د هجري لمریزې شپیتمې لسیزې په کلونو کې د افغانستان د دفاع وزارت له دې ماڼۍ نه استفاده کوله چې د۱۳٦۸ ه ل کال د حوت د میاشتې د۱٦ ورځې کودتا په ورځ چې د دوکتور نجیب الله پروړاندې، د جنرال شهنواز تڼي له خوا شروع شوې وه ډېره تاواني شوې وه، مګر ژر بیرته ترمیم شوه .

د اوپایمې هجري لمریزې لسیزې په لومړیو کې چې مجاهدینو له خوا د قدرت په سر کورني جنګونه وشول، د افغانستان دغه تاریخي بنا یوځل بیا ډېره سخته زیانمنه شوه او کله چې د وخت د دفاع وزارت (چې احمد شاه مسعود د دفاع وزیر وو) د ګلبدین حکمتیار او عبدالعلي مزاري له ګډې غونډې نه اطلاع حاصل کړه په دې قصر باندې یې دوه ځلې بمباري وکړه چې په پایله کې یې قصر په کنډوالو بدل کړ. پاتې دې نه وي چې حکمتیار او مزاری یوازې لس دقیقې مخکې له نوموړي ځایه وتلي ول. له۱۳۷۳ تر ۱۳۹۵ کاله پورې پورته یاده شوې ماڼۍ متروکه او د استفادې وړ نه وه.

د ۱۳۹۵ کال د غبرګولي په لسمه ورځ د افغانستان د اسلامي دولت ولسمشر محمد اشرف غني، د دارلامان د تاریخي ماڼۍ د بیا رغونې کار د افغانستان له بودجې نه د شپاړس میلیون امریکایي ډالرو په مصرف سره رسما پیل کړ او د

افغانستان د ښاري پراختیا د عالي کمیسیون لومړنۍ غونډه د نوموړې ودانۍ په کنډوالو کې جوړه شوه.
او د ۱۳۹۸ کال د اسد د میاشت په۳۰ مه نیټه دیو لړ شاندارو مراسمو په لړ کې ګټې اخیستنې ته وسپارل شوه.[20]
چهلستون تاریخي بڼ او ماڼۍ: کابل کې د چهلستون تاریخي بڼ بیا ورغول شو او دغه بڼ د ۱۳۹۸ ه ش کال د وري د میاشتې په ۲۷ مه نیټه د سیلانیانو پرمخ پرانیستل شو.
دغه بڼ په معیاري ډول رغول شوی او د تفریح لپاره په کې ګڼې اسانتیاوې برابرې شوې دي. دغه بڼ اوس مهال د کابل ښار یو له غوره تفریح ځایونو بلل کیږي چې ګڼې کورنۍ یې لیدو ته ورځي.
له هغه وروسته چې دغه بڼ ګټې اخسیتنې ته سپارل شوی هره ورځ د کورنیو په شمول شااوخوا ۱۵۰۰ سیلانیان د بڼ لیدو ته راځي. دغه بڼ د اتلسمې زېږدیزې پیړۍ په ورستیو کلونو کې جوړ شوی.
په بڼ کې چایخونې، کانیتنونه، ورزشي کلپونه او د ناستې لپاره په کې ښه امکانات برابر شوي دي. زه چې د لومړي ځل لپاره دغه بڼ لیدو ته ورغلم نو د تفریح لپاره دا بڼ یومناسب ځای دی.
د چهلستون په ٦٠ جریبه بڼ کې یوه ماڼۍ هم دنګه ولاړه ده چې د چهلستون ماڼۍ په نامه یادیږي، ددغې ماڼۍ بنسټ شاوخوا دوه سوه کاله مخکې، یعنې د اتلسمې زېږدیزې پیړۍ په ورستیو کلونو کې د شاه زمان په حکومت کې اېښودل شوی دی.
ماڼۍ په یو لوړ ځای کې جوړه شوې چې د کابل ښار لویه برخه ترې ښکاري او دغې ځانګړنې یادې ماڼۍ ته ځانګړې ښکلا وربښلې ده.

---

[20]: شمس، شمس الدین، د افغانستان معاصر تاریخ، ۱۳۹۳.

پخوانیو حکومتونو کې به دغه بڼ او ماڼۍ د لوړپوړو چارواکو او میلمنو کوربه وه، خو د نوییمې لسیزې کورنیو جګړو کې د دغې ماڼۍ ۸۰ سلنه برخې ویجاړې شوې.

درې نیم کاله مخکې یې د بیا جوړونې چارې د جرمني هېواد په مالي ملاتړ په معیاري ډول او تاریخي معلوماتو ته په کتو پیل شوې او تر دې چې د ۲۰۱۹ کال د مارچ په ۱۵مه ګټه اخیستلو ته وسپارل شو.

د بیا جوړونې په چارو یې ۱۴ میلیونه ډالر لګښت راغلی او د جوړولو چارې یې یواځې افغان انجینرانو او کاریګرو پر مخ بیولي دي.

د پغمان بالاباغ: پغمان د بالا باغ د ماڼیو د بیارغونې چارې په ۱۳۹۷ ه ش کال کې د ۱۷۵ میلیونو افغانیو په لګښت پیل شوې او د ۱۳۹۹ه ش کال تر لومړیو پورې یې ۸۰ سلنه کارونه بشپړ او بیرته په هماغه پخواني ډول بیاورغول شول.

عید ګاه جومات: د کابل تاریخي عیدګاه جومات چې د جګړو او د پل محمود خان سیمې خونړي ځانمرګي برید له کبله زیان ورته رسېدلی و، د بیا رغونې چارې یې د۱۳۹۷ ه ش کال د کب په میاشت کې پیل شوې چې د جومات د بیارغونې چارې د ٦١ میلیونو افغانیو او د انګړ او شنې ساحې چارې یې د ۴۰ میلیونو افغانیو په لګښت له ټاکل شوې مودې پنځه میاشتې مخکې بشپړې شوې. له بیارغونې وروسته د ۱۳۹۸کال د غوایي د میاشتې په ۲۰مه نېټه د ولسمشر محمد اشرف غني د کابینې غړو، علمای کرامو او مسوولینو لخوا پرانیستل شو.

ولسمشر غني په دغه جومات کې د جمعې له لمانځه وروسته پر یووالي ټینګار وکړ او ویې ویل: هیله ده چې هر ښادي او غم په شریکه ونمانځوو اصلي ټکی دا دی چې دا زموږ د خوښۍ ځای هم دی او د غم ځای هم، کله چې جومات د بم ایښودونکو لخوا ویجاړ شو نو کلکه اراده مې دا وه چې په داسې ډول بیا ورغول شي چې راتلونکي نسلونو ته یوه ډالۍ وي او هیله ده چې

زمونږ ټول خلک په ښاديو او غم کې له يو فکري وحدت سره د خدای (ج) په ارادې اقدام وکړي.
ولسمشر غني له ټولو انجينرانو څخه وغوښتل چې د سيالي په توګه د جوماتونو داسې نقشې ترتيب او وړاندې کړي چې د استحکام تر څنګ زمونږ د لوی تمدن ښکلا ولري او استازيتوب يې وکړي.

## د پل خشتي جومات:

د پل خشتي جومات اوږده مخينه(سابقه) لري. پخوا د پل خشتي جومات يو پوړ او د درې دالانونو، اوو رواقونو او يو ويشت ګنبدو لرونکی و. دهرې ګنبدې په منځ کې په موجوده حربي ماشين خانه کې جوړ شوی يو يوغټ فانوس ځوړند و چې د دوه طرفه لنګرونو پواسطه ښکته او پورته کيدل د خاورو تېل په کې سوځيدل. په هغه زمانه کې دغو څراغونو ځانګړی برم (خاص عظمت) درلود، دغه جومات د نوم ورکې سپاهي (سپاهي ګمنام) منار ته نيږدې موقعيت لري. پخوا د دغه جومات انګړ کوچنی و او کله چې به سراج الملته والدين د جمعې په ورځو له خپلو مصاحبانو او د دربار د ارکانو سره د لمانځه اداکولو د پاره جومات ته تللو او ګڼه ګوڼه به يې ليده، امر يې وکړ چې د جومات انګړ له هره پلوه چې امکان ولري پراخ دې کړای شي. هماغه و چې د جنوب څنډې ته د جومات احاطه پراخه شوه او وروسته بيا د پخواني پاچا د سلطنت په مهال دکابل ښاروالي لخوا بيا ورغول شو.
د بيا ځل رغولو چاري يې د جمهور رييس په ځانګړي لارښوونه د ۱۱۷ ميليونو افغانيو په بوديجه پيل شوې او د ۱۳۹۸ه ش کال د دلوې په مياشت کې ګټې اخيستنې ته وسپارل شو.

## د کابل لرغونی بالاحصار:

د دغې لرغونې سیمې د بیارغونې لومړنۍ کارونه د ۱۳۹۸ه ش کال په لومړیو کې پیل شول ولسمشر ژمنه کړې وه چې د بالاحصار کلا به د یوه لرغوني ځای په توګه په هماغه پخواني ډول بیا ورغوي د دغې لرغونې سیمې شاوخوا دیوالونه او برجونه د کورنیو جګړو او طبعي افاتو له امله تر ډېره نړېدلې وه.

د تاریخ په اوږدو کې د کابل بالاحصار ډیری وخت د واکمنانو د فعالیت او اوسیدو ځای ګڼل شوی چې د جګړو له امله څو ځلې وران شوی او بیا رغول شوی دی.

دغه ځای د برتانویانو د ښکېلاک پرمهال د دغو ځواکونو یو مهم مرکز ګڼل کېده چې په وروستي ځل په ۱۹ پېړۍ کې د جګړو په ترڅ کې وسوځول شو او کلا ته په کې ډېر زیان واوښته.

له هغه وروسته د کابل بالاحصار د کورنیو جګړو او طبعي افاتو له امله هم زیانمن شو چې تر اوسه په اساسي ډول نه وه رغول شوی. خو افغان حکومت ددغې لرغونې سیمې د بیارغولو چارې د ځینو خصوصي شرکتونو په مالي او تخنیکي مرسته پیل کړې.

د کابل بالاحصار د افغانستان یو له هغو لرغونو ځایونو ګڼل کیږي چې ګڼ بهرني سیلانیان یې د لیدو په تمه دي. د کابل د بالاحصار کلا نه یوازې د لرغونتیا له اړخه د افغانستان په تاریخ کې ډېر ارزښت لري، بلکې په دغې سیمې کې وروستۍ پلټنې ښیي چې د کوشانیانو او د هغه وړاندې دورې تاریخي اثار شته.

که څه هم د کورنیو جګړو پرمهال د افغانستان ګڼې لرغونې سیمې په ناقانونه توګه کیندل شوي او اثار یې لوټ او تالان شوي خو د کابل په بالاحصار کې دا ډول کیندنې لږې شوي.

## د شاه دوشمشېره جومات:

**دشاه دوشمشېره جومات دکابل ښار کې د اسلامي دورې د لومړنیو او ډېرو پخوانیو ودانیو څخه شمېرل کیږي. دغه جومات د کابل سیند پر غاړه د ښار په مرکز احمد شاهي واټ کې واقع شوی دی. د پیړیو په اوږدو کې دغه جومات څو ځله بیا رغول شوی چې وروستی ځل په کال ۱۳۰٦ هجري کې د امیر امان الله خان په دوره کې په سراج الخواتین مشهور وه. دده د مور له خوا په ښکلي دوه پوړیزه بڼه جوړ شو چې د معماري په ټولو برخو کې لکه طرخ او ګچ بری یا ګچ کاري، ترکاڼي او ډبرو توږلو یا حجاري څخه کار واخیستل شو چې د ملي هنر تمثیلونکی دی.**

**د جومات په ګاونډ یا څنګ کې دوه قبرونه شته چې لمړی مرقد د پیغمبر ( ص ) د تره له لمسیانو څخه په لیث بن قیس پورې اړه لري او دوهم مرقد د اسلام د سپاهیانو سپه سالار عبدالرحمن بن اشعت دی. کله چې د لیث بن قیس په قومنده د عربو سپاهیان د کابل ښار دروازو ته ورسیدل، سخته جګړه ونښته ددغې تاریخي جګړې په اخ او ډب کې لیث بن قیس په شهادت ورسید، په دغه اوسني ځای کې یې ښخ کړ او څرنګه چې هغه بزرګوار په هغه ورځ په دوو تورو باندې جنګېده نو ځکه یې لقب شاه دوشمشېره وګرځید. مسلمانانو دده مزار څنګ ته مسجد جوړ کړ چې دغه مسجد د شاه دو شمشیره په نوم ونومول شو.**

**د افغانستان ولسمشر محمد اشرف غني ۱۳۹۸ه ش کال د اسد په میاشت کې د شاه دوشمشېره تاریخي جومات د بیارغولو کار پیل کړ. دا کار د ښار جوړونې او ځمکو وزارت د جوماتونو او تاریخي ابداتو د جوړونې او بیارغونې د امریت لخوا د ۲۳ میلونه او ٦۳۱ زرو افغانیو په لګښت د یوکال په مدت کې پر مخ وړل کیده.**

## د جام ځلی:

د جمهور رییس په ځانګړي لارښوونه ددې ځلي د بیارغوونې لومړني مقدماتي کارونه د ۱۳۹۸ کال په وروستیو کې شروع شول.

د بامیانو بودایي پژی: د بامیانو مجسمې چې یوه یې ۵۳ مېتره او بله یې ۳۵ مېتره جګوالی لري. دا بتان څنګه په بامیانو کي جوړ شول؟ بامیان د یوه غره په څنګ کې د واقع سیمې لپاره استعمالېږي، چې له دوو اجزاوو څخه جوړ ده چې یو بام ده او بل یې یان د بام جز چې د رڼا معنی لري، تاسو په فارسي کې په بامداد او بامدادان کې دا وینئ، چې د سهار په معنی استعمالېږي او یان جز، یې چې دی د ځای معنی ښندي، بامیان یعنې نوراني ځای. او دا بتان تقریبا ۱۸۰۰ کاله دمخه دلته جوړ شوي دي او د بودایي دین پیروان به لکه مسلمانان، چې حج ته ځي، دغسې د دغه بتانو د زیارت لپاره راتلل. او کله چې د کوشاني سلسلې ستر امپراتور کنیشکا د بودایې مذهب لاره خپله کړه او په اوله میلادي پېړۍ کې په افغانستان کې ګریک بودیک تمدن را شین شو، نو ګریکو بودیک تمدن د افغانستان پر لرغونې ټولنه هر اړخیز تاثیرات وښندل ،د نوموړي مدنیت اثرات په افغانستان کې محدود پاتي نه شول بلکي دجاپان، کوریا، او چین څخه بیا تر اوسني ایران او سیستان پورې، دسریلانکا او هند څخه بیا تر سیر دریا اوتاجکستان پورې ټولې سیمې تر خپلې اغیزې لاندې راوستې وې ، د نړۍ له بېلا بېلو سیمو څخه به د مذهبي مراسمو د پر ځای کولو په نیت زیات شمېر راهبان، زایرین او سیلانیان په افغانستان کې د ودان شوو بودایي زیارتونو او عبادت ځایونو په ځانګړي ډول د بامیانو لرغوني او د بودایي پیر متبرک ځای ته د لیدو کتو په نیت سفرونه کول. اوس یې صرف البوشاکه شته، نور نو طالبانو په ۲۰۰۱ میلادي کال کې په داسې حال کې چې تلویزوني کامرې او عکاسي ممنوع وې، بیا هم عکاسي ځینې کېدلې ونړول شوې.

ويجاړيدل:

**دا پڅۍ د ملا عمر په حکم له منځه ولاړه، او د پوښتنې په ځواب کې د ملا محمد عمر جواب په لاندې توګه وو: ما نه غوښتل چې د باميانو بودا له منځه يوسم. په واقعيت کې يو شمير بهرنيان ماته راغلل او ويې ويل موږ غواړو چې د باميانو د بودا د ترميم پاتې کار ترسره کړو، کوم چې د بارانونو له کبله لږ خراب شوی دی. زه حيران پاتې شوم، فکر مې وکړ چې دا خلک د زرګونو انسانانو ژوند ته هيڅ درناوی نلري هغه افغانان چې له لوږې مړه کيږي، مګر د غير ژوندي شيانو لکه بودا په اړه اندېښمن دي. دا راته خورا ناوړه عمل ښکاره ش. له همدې کبله ما د بودا د ويجاړولو امر وکړ،که دوی د بشري کار لپاره راغلي وای، ما به هيڅکله د بودا بوت د ويجاړيدو حکم نه واي ورکړی.**

## د هرات جامع جومات:

**د هرات جامع جومات بنسټ ايښودونکی سلطان غياث الدين غوري دی چې دده زيارت هم دهمدې جومات په شمالي برخه کې تر يوې ګنبدې لاندې څرګند دی او دا مشهور واکمن په ۱۲۰۲ م کال کې په حق رسيدلی دی.**

**د دې جومات په جنوبي برخه کې د غوريانو د دورې يو څه نقش و نګار هم پاتې دی، چې هلته يو ښه روښانه او ښکلې کتيبه هم تر سترګو کيږي چې د سلطان غياث الدين نوم پرې ليکل شوی دی.**

**دا جومات چې کله د تيموريانو په دوران کې د دويم ځل لپاره نقش و نګار شو، د غوري دورې نقش په کې له منځه ولاړ چې مخکې يې يادونه وشوه يوازې په يوه برخه کې پاتې و، خو په ۱۳۲۲ هـ ش کال کې بيا کار پيل شو او په دې اړه زيار ايستل کېده چې هغه پخوانۍ ښه برسېرنه او د تيموري دورې نقش ترې يو پلو ته کړي چې دا کارونه د تيموري پاچا سلطان حسين بايقرا په**

**وخت کې صورت نيولی و چې دهغه واکمنۍ دوره له ۱۴۶۸م څخه بيا تر ۱۵۰۶ م پورې يوه زرينه او علم پروره دوره وه.**

**د هرات لرغونو ودانيو ته په دې وروستيو څو کلونو کې د ملګروملتونو کلتوري څانګې يونيسکو پام هم وراوښتی سره له دې چې د اغا خان د بنسټ له خوا د هرات د پخوانۍ معمارۍ له معيارونو سره سم په دې ولايت کې، د لرغونو ودانيو د بيا جوړولو لپاره مهمې پروژې ترسره شوي، خو د هرات په زاړه ښار کې د نوو ودانيو جوړېدل هغه څه دي چې تراوسه يې د نړۍ د کلتوري اثارو په فهرست کې د هرات د زاړه ښار د شاملېدو پر وړاندې خنډ ګرځېدلي. دا لړۍ تر اوسه دوام لري او چارواکي وايي دوی هڅه کوي چې مخه يې ونيسي.**

**د هرات لوی جامع جومات چې څه باندې اووه سوه کاله قدامت لري، په تېرو کلونو کې ډېر زيانونه ليدلي او ډېری کاشيان يې لوېدلي دي، د لومړي ځل لپاره د هرات د لوی جامع جومات د بيارغونې مقدماتي سروې د افغانستان د ښارجوړونې وزارت له خوا پيل شوې ده.**

**د افغانستان د ولسمشر په امر د هېواد ددې جومات د بيارغاونې چارې د ښارجوړونې وزارت ته سپارل شوي دي.**

**دا پروژه په اوږدمهاله توګه په څو پړاوونو کې د افغانستان دولت له بوديجې ترسره کېږي.**[21]

---

[21]: د جمهوري رياست عملياتي او ملاتړ اداري ويبسايټ او بيج.

# شپږم څپرکی

## په افغانستان کې اداري فساد

په افغانستان کې د حامد کرزي تر مشرۍ لاندې حکومت له رامنځته کېدو وروسته، يو شمېر کورنيو او نړيوالو څېړنيزو مرکزونو په هېواد کې د اداري فساد د کچې معلومولو په موخه سروې‌ګانې او څېړنې کړې دي. د بېلګې په ډول له ۲۰۰۵ م کال وروسته د شفافيت نړيوالې ادارې هر کال په هېواد کې د اداري فساد په تړاو سروې‌ګانې کړې دي، ايشيا فاونډېشن هم له ۲۰۰٦ م کال وروسته، هر کال د اداري فساد په تړاو له خلکو څخه نظرپوښتنه کړې او له ۲۰۰۷ م کال وروسته، د افغانستان د روڼتيا څار ادارې هم د اداري فساد د کچې معلومولو په تړاو سروې‌ګانې او څېړنې پيل کړې.
که په تېرو پنځلسو کلونو کې د اداري فساد پرضد دغو څېړنو او سروې‌ګانو ته ځير شو، نو ويلی شو چې په هېواد کې د اداري فساد کچه نه يوازې دا چې کمه شوې نه ده، بلکې په ۱۳۹۴کال کې خپل اوج ته هم ورسېده.
د شفافيت نړيوالې ادارې د سروې‌ګانو له مخې، له ۲۰۰۵ کال څخه تر ۲۰۰۹ کال پورې د اداري فساد کچه زياته شوه، خو له ۲۰۰۹ کال څخه تر ۲۰۱۱ کال پورې بيا د اداري فساد کچه راکمه شوه. په ۲۰۱۲ او ۲۰۱۳ کلونو کې بيا خپل اوج ته ورسېده، خو د ۲۰۱۴م کال څخه راوروسته د اداري فساد ګراف منفي خوا ته روان وه چې دليل يې د اداري فساد په وړاندې د ملی وحدت حکومت يو شمېر ګامونو وو.

د افغانستان روڼتیا څار ادارې هم د اداري فساد پرضد خپلې څلور څېړنيزې سروې ګانې خپرې کړې او له دغو سروې ګانو څخه جوتېږي چې په ۲۰۰۷، ۲۰۱۰، ۲۰۱۲ او ۲۰۱۴ کلونو کې په ټول افغانستان کې په مجموعي ډول ورکړل شوی رشوت او د بالغو کسانو شمېره چې په دغو کلونو کې يې رشوت ورکړی زيات شوی وو.

يو شمېر نورو ادارو، لکه د ملګرو ملتونو د مخدره توکو، جرمونو ادارې او د بودجې د شفافيت سازمان هم په دې تړاو څېړنې او سروې ګانې خپرې کړې چې په ټوليز ډول له ۲۰۰۹ کال وروسته د اداري فساد د کچې زياتوالی ښيي.

## د اداري فساد پرضد د ملي يووالي حکومت مبارزه

ولسمشر د غازي امان الله خان د نيمګړي څپرکي د بشپړيدو ژمنه کړې وه، ولسمشر ۲۰۱۴م کال څخه تر ۲۰۲۴م کاله پورې د بدلون لسيزه نومولې.۲۰۱۷م کال کې د فساد پر وړاندې استراتيژي جوړه شوه چې پر اساس يې اوس لوړ رتبه چارواکي محاکمه کيږي. په لسګونو نوي قاضيان وګمارل شول. په محاکمو او څارنواليو کې هم اصلاحات راغلل. له ۲۰۱۵م کال څخه را په ديخوا۳۹۰ قوانين تصويب او يا تعديل شول. د کابل بانک غلا شوې پيسې نيمې يې بيرته را وګرځول شوې. سيسټمونه تر ډېره بريده بايومټريک شول.

د ۱۳۹۳ کال د ولسمشريزو ټاکنو پرمهال د ولسمشرۍ نوماندانو د اداري فساد د ختمولو په اړه پخې ژمنې وکړې. په دې تړاو افغان ولسمشر محمد اشرف غني هم په خپل ټاکنيز منشور کې په دې اړه يو ځانګړی بحث وکړ. د ملي وحدت حکومت له جوړېدو وروسته، افغان ولسمشر اشرف غني د لندن په کنفرانس (۲۰۱۴) کې د اداري فساد پر ضد د مبارزې لپاره خپله تګلاره روښانه کړه. دغه راز ولسمشر له فساد سره د مبارزې په کنفرانس (د ۲۰۱٦ کال مې مياشت) کې

د اروپايي ټولنې پلاوي ته د اداري فساد پرضد مبارزې په تړاو خپلې ژمنې تکرار کړې او وروسته يې د لندن په کنفرانس کې د فساد پر ضد خپله مقاله هم وړاندې کړه. د افغانستان د سولې او پرمختيا ملي چوکاټ کې هم چې د بروکسل د کنفرانس لپاره چمتو شوی و، د اداري فساد پرضد ژمنې وشوې.

د ملي يووالي حکومت په پيل کې د اداري فساد پرضد يو شمېر چټک او جدي گامونه پورته کړل او له امله يې افغانستان د شفافيت نړيوال سازمان په فساد ککړو هېوادونو کې له دويم څخه ځلورم نمبر ته راټيټ شو، خو وروسته دغه مبارزه په هغه سرعت او جديت سره تعقيب نه شوه په کوم ډول چې د ملي يووالې حکومت په پيل کې وه.

په عمومې ډول د ملي وحدت حکومت د اداري فساد پرضد مبارزه کې ډېرى گامونه واخيستل،د بېلگې په توگه د (۲۰۱۴) کال کې د کابلبانک قضيه پرانيستل شوه، په (۲۰۱٦)ميلادي کال کې يې د حکومتی چارواکو شتمنۍ ثبت کړې او په (۲۰۱٦) ميلادی کال کې يې له اداري فساد سره د مبارزې عدلي او قضايي مرکز پرانيست، او په ۲۰۱۸م کال کې يې د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزير ښاغلی عبدالرازق توحيدي د فساد په تور محاکمه کړ.

افغان حکومت په اداري فساد کې ښکېل لوړ پوړي چارواکي محاکمه کړل، هم يې له اداري فساد سره د مبارزې په ښکېلو ادارو کې هر اړخيز اصلاحات راوستل د بېلگې په توگه قضا، څارنوالي او امنيتي ارگانونه.

له اداري فساد سره د مبارزې عدلي او قضايي مرکز پرانيستل: ولسمشر محمد اشرف غني د دغه مرکز د پرانيستلو په اړه جوړې شوې غونډې ته وويل: د دغه مرکز د جوړېدو هدف دا دي چې قانون پر ټولو يو شان تطبيق شي.

افغان ولسمشر ویل: له اداري فساد سره د مبارزې د عدلي او قضايي مرکز له جوړېدو څخه يې هدف دا وه تر څو له دغې پديدې سره مبارزه په همغږۍ سره پر مخ يوړل شي.

ولسمشر اشرف غني په دې اړه جوړې شوې غونډې ته وويل: چې له اداري فساد سره له جدي مبارزې پرته به حکومت په خپلو امنيتي او اقتصادي پروګرامونو کې پرمختګ ونشي کړای.

ولسمشر غني وويل: چې د دغه مرکز جوړېدل له فساد سره د مبارزې په برخه کې د حکومت د سياسي ارادې څرګندونه کوي.

افغان ولسمشر ټينګار وکړ چې له اداري فساد سره د مبارزې دغه مرکز بايد، د جرمونو د کشف او د قانون د عملي کېدو په برخه کې دريو برخو لکه دقت، سرعت او قاطعيت ته پام وکړي.

د حکومت اجراييه رييس عبدالله عبدالله هم ټينګار وکړ چې هيڅ چا ته به دا اجازه ور نه کړل شي چې له دغه مرکز څخه سياسي ګټه واخلي.

ښاغلي عبدالله په ورته وخت کې له اداري فساد سره د مبارزې له عدلي او قضايي مرکز څخه د حکومت سياسي ملاتړ څرګند کړ.

جمهوري رياست ويلي و چې د دغه مرکز مشري به د افغانستان لوی څارنوال کوي او د هغو لوړ پوړو چارواکو د دوسيو څېړل يې په کاري لومړيتوب کې دي چې په اداري فساد ککړ دي.

د افغانستان د کابينې د اوو غړيو او د ښار جوړونې وزارت د شپږو کارکونکو د فساد دوسيې، د دفاع وزارت په قراردادونو کې فساد او داسې نور په افغانستان کې د اداري فساد له سترو بېلګو څخه ګڼل کېږي.

زما په نظر، له کومه ځايه چې په فساد ککړ زياتره چارواکي دا مهال په بهر کې اوسېږي، نو دا به حکومت ته ګرانه وي، لکه څرنګه چې لازمه ده له دغې پديدې سره جدي مبارزه وکړای شي.

د اداري فساد درنو جرمونو ته د رسیدنې عدلي او قضایي مرکز، د فساد پر وړاندې د مبارزې په دوام، افغان جنرال او د هلمند پخوانی امنیه قوماندان عبدالرحمان سرجنګ هم په بند محکوم کړ.

## حکومت ولې په خپله مبارزه کې ناکام شو؟

ملي وحدت حکومت په خپلو لومړیو پنځو کلونو کې د اداري فساد پر ضد مبارزه کې یو شمېر ګامونه پورته کړل، لکه د اداري فساد پرضد د مبارزې په موخه د یو شمېر ادارو او قوانینو جوړوونه او د ملي یووالي حکومت له راتګ سره هم مهاله د اداري فساد پر ضد مبارزه کې یو شمېر اقدامات، خو دا چې د ملي یووالي حکومت له جوړېدو وروسته د اداري فساد پر ضد د افغان حکومت دغه هڅې او ګامونه ولې تر ډېره له ناکامۍ سره مخ شول، عوامل یې په لاندې ډول دي.

سیاسي او امنیتي بې ثباتي: سیاسي او امنیتي بې‌ثباتي هغه لوی لامل و چې د اداري فساد پر ضد یې د ملي یووالي حکومت حوصله ورماته کړه. په عمومي ډول پیاوړی او ځواکمن مرکزي حکومتونه چې په امنیتي او سیاسي برخه کې له لږو اختلافاتو سره مخ وي، د اداري فساد پر ضد مبارزه کې جدي او سخت ګامونه پورته کوي. که حکومت له سیاسي او امنیتي بې‌ثباتۍ سره مخ وي، نو حکومتونه د «مصلحت» او د خپلو حکومتونو د دوام په موخه د اداري فساد پر ضد ګامونه نه پورته کوي.

ناهمغږې تګلاره: د ملي یووالي حکومت چې د اداري فساد پر ضد یې یو شمېر ګامونه پورته کړل، نو د دغو ګامونو د ناکامۍ تر شا یو لامل دا هم و چې افغان حکومت د اداري فساد پر ضد همغږي تګلاره نه لرله، د بېلګې په ډول له یوې خوا یې د کابلبانک قضیې پوروړي زندان ته ولېږل او دغه دوسیه یې په لومړیو وختونو کې په جدي ډول تعقیب کړه، خو د وخت له تېرېدو وروسته،

**د کابل‌بانک قضيې مهم او ستر پوروړی (خليل الله فيروزی) يې له زندانه راخوشې کړ او له نوموړی سره په يوه لويه غونډه کې په ښه حکومتولۍ او اصلاحاتو کې د ولسمشر له ځانګړی استازی احمدضياء مسعود او يو شمېر وزيرانو سره يو ځای د سمارټ سيټيي په نامه د يوه ښارګوټي جوړولو قرارداد لاسليک کړ، دغه کار د اداري فساد پر ضد مبارزه کې د افغان حکومت جديت او مبارزه تر پوښتنې لاندې راوسته او تر ډېره يې د حکومت هڅې پيکه کړې، د حکومت د دغې ناهمغږې تګلارې بل لامل دا هم دی، چې د اداري فساد پرضد مبارزه کې افغان حکومت ۱۷ بنسټونه جوړ کړي وه چې دغه بنسټونه بيا د شفافيت نړيوال سازمان د راپور له مخې د برياليتوب ډېرې لږې نښې لري.**

**د ملي يووالي حکومت اېتلاف ډوله بڼه: بل لامل چې د اداري فساد پرضد مبارزه کې د ملي يووالي حکومت د ناکامۍ لامل شو، د ملي يووالي حکومت اېتلاف ډوله بڼه وه، په دغه حکومت کې د ۱۳۹۳ه ش کال بريالۍ او ناکامې ټاکنيزې ډلې دواړې سره يوځای شوې چې له همدې کبله د اصلاحاتو او د لوړ پوړو چارواکو د ټاکلو په تړاو د ملي يووالي حکومت د دوو مشرانو ترمنځ اختلافات بيا د دې باعث شول چې د اداري فساد پرضد د حکومت تګلاره اغېزناکه ثابته نه شي.**

## د غصب په وړاندې مبارزه

**ملي يووالي حکومت په داسې وخت کې رامنځته شو چې له يوې خوا بهرنيان له افغانستان څخه په تېښته کې وو، له بل لوري خلک يوې ناڅرګندې وېرې او ناهيلۍ په مخه کړي وو، له بل لوري په هېواد کې ظلم، وحشت، بې قانوني، زورواکي، فساد او غصب اوج ته رسېدلی و.**

که څه هم په لومړیو کې خلکو ته ناشونې ښکارېدله، خو ولسمشر غني په همغو ستونزمنو شیبو کې واړه واړه بحرانونه او ستونزې داسې مدیریت کړې چې هم یې د هېوادوالو او هم یې د نړیوالو قناعت او رضایت ترلاسه کړ او له همدې امله یې په لږ وخت کې پر حکومت بایللی باور بېرته ترلاسه او د هغوی ناهیلي په هیله مندي او باور بدله کړه.

د ملي وحدت د حکومت په دوره کې ناامني، کډوالي، زورواکي، خپلسري او بې قانوني د نورو ستونزو د ایجاد تر څنګ د ځمکو غصب هم د یو بحران په کچه زیات کړ او له همدې امله د ملي یووالي حکومت په ټولو ولایتونو کې له پراخ غصب سره مخ شو له همدې امله یې د ځمکو او اوبو عالي شورا په غونډو کې د غصب پر مخنیوي ټینګار وکړ.

ملي یووالي حکومت یوازې د غونډو او شوراګانو په بحثونو بسنه ونه کړه، بلکې د ځمکو او جایدادونو د غصب د مخنیوي په موخه یې د زمینداری د چارو تنظیم قانون طرح او توشیح کړ. دغه قانون په ۱۳ فصلونو او ۱۱۹ مادو کې په ۱۲۵۴ ګڼه رسمي جریده کې د ۱۳۹٦ کال د حمل میاشتې په ۲٦ نېټه خپور شو.

د زمینداری د چارو تنظیم قانون د ځمکو د ادارې دندې او واکونه تعریف کړي او د ځمکو او اوبو عالي شورا یې معرفي کړې ده. په دغه قانون کې د ځمکې د چارو پر تنظیم، د ځمکې او مالکیت د اعتبار وړ اسنادو، د مالکیت حق د کدستر او تثبیت سروې، د ځمکې تصفیه، جزایي احکامو او نورو موضوعاتو په اړه وضاحت ورکړل شوی. د دغه قانون یولسم او دولسم فصل په مشخص ډول د ځمکې پر غصب او جزایي احکامو بحث کړی. د غصب کوونکي تشخیص، د غصب شوې ځمکې استرداد او هغه ته رسیدګي د قانوني پړاونو تېرولو پرته د ځمکې تبادله، مقابل لوري ته د غصب شویو ځمکو په اړه

د وخت مراعتولو او د قانون رجعت پرته، د غصب کوونکي مجازات او د وېشل شويو ځمکو استرداد د دغو دواړو فصلونو عمده موارد ول.

د ملي يووالي حکومت د ځمکې غاصبينو لپاره د جزا په اړه قانوني وضاحت څرګند کړ.

د دې ترځنګ د غصب او د ځمکو د غاصبينو د قضيو تعقيب هم په عملي ډول ترسره شو چې په پايله کې يې عدليې وزارت په بېلابېلو قضيو کې د دولت د زرګونه جريبه ځمکې دفاع وکړه، د ځمکې ادارې له غاصبينو څخه ۲۰۸،۷ زره جريبه ځمکه بېرته واخيسته. ۱۵۸۳۱ غاصبين ليست شول. ۳۵۵ غير قانوني ښارګوټي تشخيص شول.

د افغانستان د ځمکو ادارې د غصب شويو ځمکو د استرداد د پاليسي مسوده جوړه کړه او د ځمکو غصب مخنيوي ستراتيژيک پلان يې هم تدوين کړ. د غصب د مخنيوي او د غصب شويو ځمکو د بېرته راګرځولو په برخه کې حکومت او په ځانګړي ډول ولسمشر غني نهايت جدي وه او اړونده مسوولينو ته يې په دې اړه وخت پر وخت په ټينګار سره لارښووني کولې.

د غصب په وړاندې د مبارزې لپاره د ولسمشر عمده کارونه:

- کابل کې د ځمکو د غصب د مخنيوي لپاره د ځانګړې قطعې جوړول
- د (پکتيا، خوست، پکتيکا، ننګرهار، کونړ، لغمان او نورستان) ولايتونو لپاره ددولتي ځمکو د غصب مخنيوي محکمه جوړه شوه
- د نيول شوو(غصب) ځمکو د لانجو د حل لپاره ځانګړې محکمه جوړه شوه
- د ځمکو او جايدادونو د غصب د مخنيوي په موخه د زمينداری چارو د تنظيم قانون طرح او توشيح شو

## ښه حکومتولي

ښه حکومت د یو هېواد د امنیت، پرمختیا، ترقۍ، د خلکو ترمنځ د نیکو اړیکو، تحصیل، صحت، زراعتي ودې، او د همسایه ګانو سره د انډول ساتلو یو مهم جز یا مهم ارګان شمېرل کیږي او په بین المللي سطحه ښه حکومت د ملي او بین المللي اړیکو فیصلو او تصامیمو په نیولو کې خورا لوی او مهم نقش لوبولی شي.

ښه حکومتولي د ولسوالۍ دیوه ( سپاهي، یوه بلوک مشر، یوه سرکاتب، یوه مامور، یوه قوماندان امنیه، یوه قاضي، یو محرر، یوه خزانه دار او یوه ولسوال نه شروع او رامنځته کیدای شي ) چې د یوه سره باید وطن، وطندارانو ته پاک، صادق با مسولیته غمخواره زړه سوانده با رحمه د ملي وحدت غوښتونکي یو بل په غیږ کې نیونکي ( همدیګر پذیره ) دوست او دښمن وپیژني، دښمن ته خوله ماتونکی ځواب ورکړي، هیڅکله د دښمن سره د خلکو په وژلو، دخلکو په ځورولو، د خلکو په چورولو او بیناموسه کولو کې شریک ونه ووسي، په دې برخه کې مسلکي او باسیواده کسانو ته اشد ضرورت دی.

## د ښې حکومتولۍ په برخه کې د ولسمـشر غني لاسته راوړنې

جمهور رییس د ښې حکومتولۍ لپاره د ولایتونو او ولسوالیو ټول مامورین تبدیل کړل، یعنې (( والي، امنیه قوماندان، رییس امنیت ولایت، قوماندان لوا یا غند مربوطه وزارت دفاع، قوماندان سرحدی، امر امنیت څارندوی، مستوفي، رییس ګمرک، شاروال او قاضیان )) ولسوالۍ می دمخه یاده کړه، دغو کسانو دغه۱۳ کاله د خپلو منافعو او ځانونه سرمایه داریدو او د ژوندي پاتې کېدو په خاطر د افغانستان داخلي او خارجي دښمنان سره د جوال خوله نیولې وه، چې تر نننه د بې امنیو سره مواجه یو او هر یو نن ملیونر دی،

ولسمشر غني ددغو کسانو په ځای نوی تحصيل يافته، باتجربه، پاک او وطن دوسته، وطن او ملي نواميسو ته متعهد او وفادار کسان وګمارل او د رييس جمهور ټول اوامر، فرامين او دساتير په بشپړه توګه عملی شول.

په دې برخه کې د ولسمشر غني نورې لاسته راوړنې عبارت دي له اداري کمپلکس، الکترونيکي حکومتولي، اسان خدمت اداره او داسی نور.

د دارالامان اداري کمپلکس: دا کمپلکس د ۱۳۹۸ ه ش کال د چنګاښ پر ۲۳ مه د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت د رييس محمد اشرف غني، د ولسي جرګې رييس، قاضي القضات، د مشرانو جرګې رييس او د کابينې د ځينو وزيرانو په حضور پرانستل شو.

د دغه کمپلکس له جوړيدو سره به څه ناڅه ۲۷ دولتي ادارې ورولېږدول شي او د ښار مرکز هم يو ځل بيا د دغه ښار اوسيدونکو ته وسپارل شي.

په دارالامان کې د اداري کمپلکس دغه پروژه په دوه سوه هکتاره ځمکه کې جوړيږي چې په دوه پړاوونو کې به يې چارې په شل کلونو کې بشپړې شي.

د اداري کمپلکس جوړې شوې غونډې ته د ولسمشر د وينا يوه برخه: د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت رييس، د خپلو خبرو په پيل کې د دغه کمپلکس جوړونه يوه لويه پروژه وبلله او ياده پروژه يې کابل کې د ښاري نظم راوستو او ښې حکومتولی په برخه کې مهم او ارزښتناک ګام وباله. نوموړي زياته کړه چې د يادې ودانۍ د جوړونې ترڅنګ بايد د حکومتدارۍ سيستمونه هم پرمختللي او ځواب ويوونکي جوړ شي.

هغه د افغانانو همت ته په خبرو کې څرګنده کړه، چې افغانانو خپل تېر خوندي کړ او دغه راز يې وويل: سل کاله مخکې د چاردهي خلکو په خپله خوښه خپل ګران پاچا امان الله خان ته خپلې کرنيزې ځمکې وسپارلې. د چاردهي خلکو ته مبارکي وايم چې د لومړي درجې دولتي ودانۍ د جوړولو هيلې ته يې چمتووالی وښود.

**نومورې دغه راز په ډاګه کړه چې موږ يوازې پر کابل نه راڅرخو، بلکې غواړو په ۲۷ نورو ولايتونو کې هم اداري کمپلکسونه ولرو .**

**ښاغلي غني وويل چې دولتي ادارې به دارالامان ته وليږدول شي او هيڅ ودانۍ به له دارالامان ماڼۍ لوړه نه وي او د دې ماڼۍ لوړوالى به خوندي وي.**

**ولسمشر غني د کابل اوسيدونکو ته ډاډ ورکړ چې د کابل ښار د اوسيدونکو ملکيتونه ثابت، د اعتبار وړ او د دوى د پانګونې لپاره دي.**

**هغه د خپلو خبرو په بهير کې دا هم په ډاګه کړه چې کابل بې ځښتنه و او ستونزې يې هم د غوره حکومتدارۍ تشې رامنځته کړې وې.**

**هغه وويل: زه هغه کابل غواړمچې په شعرونو کې ستايل شوى او بابر ورته د خپل مړي د راليږدولو سپارښتنه کړې وه.**

**الکترونيکي حکومتولۍ او اسان خدمت سيستم: د اسان خدمت مراکزو جوړونه د افغانستان د عامه خدمتونو د وړاندې کولو سيستم کې يوه موثره نواوري وه چې ويشوي کولی په يوه مرکزي موقعيت کې د مختلفو اداراتو خدمتونو تر يوه چت لاندې په ساده او چټک ډول وړاندې کړي. د اسان خدمت برنامې د خدمتونو په وړاندې کولو کې مثمريت، موثريت او روڼوالي د ملاحظې وړ وده راوستله او د دولت غبرګون يې د ښاريانو د غوښتنو پر وړاندې چټک کړ.**

**اسان خدمت وړيا خدمتونه د دولتي ادارو خدمتونو ته د خلکو لاسرسى اسانه کړ، د دولتي خدمتونو سرعت يې چټک کړ او د محلي حکومتدارۍ د پياوړتيا په ګډون يې د خلکو د سرګرداني او مالي فساد مخه هم ونيوله.**

**دغه سيستم په ۲۰۱۲ ميلادي کال په اذربايجان کې رامنځته او پيل شو چې د فساد په مخنيوي کې يې ډېر رول ادا کړ او همدې تجربې ته په کتو په ۲۰۱٦م کال کې ولسمشر دغه سيستم وپېره، ولسمشر غوښتل په دې توګه خپله**

هغه ژمنه پوره کړي چې د وارسا په ناسته کې یې د فساد د ختمېدو په اړه کړې وه.

اسان خدمت د خدمتونو یو بنډل دی چې په پرمختللې ټکنالوژي سمبال دی او خلکو ته د دولتي سکتور اړوند له ۱۵۰ ډوله زیات خدمتونه وړاندې کوي. خلک کولی شي د خپلو کارونو لپاره د دغه سیستم په چوکاټ کې د ټیلیفون او نیټ په مرسته خپل کارونه مخ ته یوسي.

دغه سیستم خلکو ته چټک خدمتونه  وړاندې کوي او د کاغذ پراني او مالي فساد مخنیوی په کې کېږي، دغه سیستم د هېواد په پنځو زونونو کې فعال  او د ۲۰۲۰م کال څخه تر ۲۰۲۴م کاله پورې به ټولو ولایتونو ته وغځول شي.

د اسان خدمت سیستم له لارې به نور خلک اړ نه وي چې د پاسپورټ، لایسنس، جواز اخیستلو او لسګونو نورو کارونو تر سره کولو لپاره په ورځو ورځو بېلابېلو ادارو ته لاړ شي.

د اسان خدمت په مرکز کې به د بانک او ټولو ادارو استازي موجود وي او یو تن چې د خپل کار تر سره کولو لپاره  ورځي نو د مرکز په یوه سر کې به یې د کار مراحل پیل او  تر بل سر پورې به بشپړ شي له دې سره به د ګڼو ښېګڼو تر څنګ هغه ستونزې پای ومومي چې خلک یې د یوه عادي کار د کولو لپاره په ورځو او ان اوونیو پر ځان مني.

## ملي هویت  او د بریښنایي تذکرو د ویش پیل

ملي هویت د ملتونو د ځانګړو هویتونو پر بنسټ پیژندل کیږي،څنګه چې د انسانانو ترمنځ د خیرې او نوم توپیر موجود دی، همدارنګه د هېوادونو ترمنځ د جغرافیې او ملي هویت پر اساس د هغوی د حقوقي شخصیت استازولي کوي کله چې له ملتونو هویت واخیستل شي، نو د هغوی له وجوده چې اروا وایستل شي،مرګ او ورکاوي یې حتمي کیږي.

ملتونه د هویت د ساتلو لپاره جګړې کوي قرباني ورکوي او حتی د نړیوالو جګړو د رامنځته کیدا سبب ګرځي .

ملي وحدت حکومت ته له کرزي ډیرې ناخوالې، نیمګړې دندې او ستونزې ور پاتې وې، خو د ټولو په سر کې ورته حساسه سکالو د افغان هویت څخه د دفاع شخړه لاینحله پاتې وه، ولسمشرغني په ډیره مدبرانه ډول، په نا ویلې او نا سنجیدلي توګه د نفسو د شمیر قانون توشیح او په دې توګه یې د رسمي جریدې برخه وګرځوله، ولس په غوسه شو، مدني نیوکې اوج ته ورسیدې، له دې امله ولسمشرغني مجبور شو، چې د افغان هویت په برخه کې د مدني، سیاسي او ولسي خوځښتونو استازي ارګ ته وروبولي.

دي مجلس ته د مدني ټولني د یو استازي په وینا چې ولسمشر دې غونډې ته په ډیر مغروره انداز وویل: زه وم چې ولسي غبرګون مې د افغان هویت د ملاتړ د پاره راوخځاوه، ځکه که ما دا نمیګړی قانون نوی توشیح کړی، نو د ولس غبرګون به نه وای را غبرګ شوی ما غوښتل چې په دې توګه ولس ددې قانون خلاف راوپاروم او بیا ددې قانون د تغیر د پاره له ولس سره په ګډه کار وکړم.

اوس د بریښنایې تذکرو د ویش لړۍ پیل شو، چې د هېواد په اکثریتو ولایتونو کې یې اداري وجود لري.

## ځوانه اداره

د مرکزي احصایې د راپور له مخې افغانستان نږدې دیرش میلیونه وګړي لري چې ٦٣سلنه وګړي یې ځوانان تشکیلوي خو له بده مرغه چې په ډیری سیاسي، کلتوري، فرهنګي او پراختیایي برخو کې کمه ونډه ورکړل شوې. نو لکه څنګه چې هېواد مو د لوی ښتن په فضل تر ډیره ځوان قشر څخه جوړه شوې نو تر ډېره بریده قرباني هم همدغه ځوان ورکړي.

په هېواد کې د امنیت ټینګول د ټولنې د ټولو خلکو دنده ده، خو ځوانان چې نوی فکر او انرژي لري او د ټکنالوژۍ او بهرنیو ژبو په ځانګړې توګه د انګلیسي ژبې سره چې یوه نړیواله ژبه ده او نیږدې په ټوله نړۍ کې د رسمي ژبې حیثیت یې پیدا کړی دهغو له پرمختګونو سره بلد دي، کولی شي چې د نورو په نسبت ډیرفعالیت وکړي، دهمدې له امله ځوانانو ته مخ اوړي.
لکه څنګه چې مخکې مو یادونه وکړه ځوانان د ټولنې اکثریت دی، نو په ناامینو کې یې زیان هم ترنورو زیات دي.
جهمور رییس محمد اشرف غني د ځوانانو په هره غونډه کې په دې ټینګار کولو چې هیله مند دی چې افغان اداره ځوانه کړي او د هېواد رهبري هم ځوانانو ته وسپاري.
چې ولسمشر خپله دا ژمنه تر ډېره عملي کړه او د هیواد اداره یې ٪٦٠ ځوانه او د ولسمشر له لوري ډیری ځوانان په مهمو او لوړو بستونو وګمارل شول چې تر ډیره په خپلو چارو کې بریالي او کامیاب وه.
د بیلګې په ډول د ولسمشر د ملي امنیت سلاکار حمدالله محب او د چارو د اداري رییس ډاکتر فضل محمود فضلي.
که څه هم ښاغلی محب او فضلي یو نوې سیاسي او ولسي څیرې وې او ښه مدیران هم ول خو د هېواد دننه او بهر د مافیایې کړیو لخوا بیلابیل تورونه پرې لږیدل خو لکه د نورو سیاسیونو په څیر نا هیلې نشول او ان حوصله یې هم ونه بایلله او لاهم یې د هېواد د پرمختګ لپاره خپلې هڅې جاري وساتلې.
لازمه ده چې افغان ځوانان په منظم ډول کار وکړي او د خپل راتلوونکي لپاره خپله لاس په کار شي .
هیڅ بهرنی لکه څنګه چې موږ افغانان چاته هېواد نه رغوو هغوې هم زموږ هېواد نه جوړوي ترڅو چې موږ خپله د ابادۍ لپاره لاس په کار نه شو.

نو ښه خبره داده چې د افغانستان راتلونکې رهبري دې ځوانانو ته په اختيار کې ورکړل شي ، ځکه ځوانان يو دبل په مشکلاتو، ستونزو او خوښيو تر هر بل چا ښه پوهيږي.

# اووم څپرکی

## د سولې په چارو کې د ولسمشر اشرف غني لاسته راوړنې

سوله له ننگونو ډکه لار ده، خو د ولسمشر غني فعال سيميز سياست او د سويلي اسيا لپاره د امريکا ستراتيژي هغه څه وه، چې د افغان حکومت په محوريت يې د سولې خبرو ته لاره پرانيستله او تمه شته چې په راتلونکې به پايله ورکړي.

## ولسمشر غني څه ډول سوله غواړي؟

سوله او د جگړې پای ته رسول د ولسمشر غني له مهمو ټاکنيزو شعارونه څخه و.

که څه هم له امريکا سره د امنيتي تړون له لاسليکولو وروسته ولسمشر غني د ملي يووالي حکومت پر مهال په مختلفو ډولونو ډېره هڅه وکړه چې طالبان له افغان حکومت سره د سولې خبرو ته کېنوي، خو د سولې په تړاو د نوموړي دغه ټولې هڅې د يوې حکومت محوره پروسې لپاره وې. يعنې افغان حکومت تل هڅه کړې چې طالبان هم د حزب اسلامي په شان سولې ته غاړه کېږدي او د يوې ډلې په توگه له افغان حکومت سره يو ځای شي، خو دا هغه څه وه چې طالبانو يې تل مخالفت کاوه او له لويه سره يې د ولسمشر غني په مشرۍ حکومت "نامشروع" گڼلی وه.

ولسمشر غني غوښتل چې د سولې په خبرو کې د جمهوريت نظام، پوځ، پوليس، استخبارات، تعليمي او تحصيلي موسسات، د بيان ازادي، ټاکنيز سيستم، د ښځو حقوق، او عام المنفعه ټولې پروژې بايد وساتل شي.

په مجموعي شکل نظام له منځه وړل او یا په فردي توګه د نظام د مهمو بنسټونو او لاس ته راوړنو له منځه وړل به، هیڅکله د دوامدارې سولې باعث نه شي. په مشخص ډول باید د سولې په بهانه تر تعرض لاندې را نه شي. ځکه دا ډول مسایل د سولې د دوام تضمین کوي، چې په نه شتون کې به یې نوي اختلافات او حتی جګړې رامنځ ته شي.

له ګلبدین حکمتیار سره سوله کول په کابل پروسې کې د بې شرطه سولې خبرو وړاندیز، له طالبانو سره په کوچني اختر کې ۳ ورځني اوربند، د سیمیزې او نړیوالې اجماع رامنځته ته کول، په کابل کې د ۳۰۰۰ علماوو له لوري روانه جګړه فتنه بلل، د۳۳ اسلامي هېوادونو د غونډې له لورې د روانې جګړې ناروا بلل، د کعبې د امام له لوري د روانې جګړې ناروا بلل په اندونیزیا او ازبکستان کې د سولې په اړه د کنفرانسونو رابلل په دې برخه کې عمده لاسته راوړنې وې چې لاندې ترې یادونه کوو:

د ګلبدین حکمتیار په مشرۍ د اسلامي  حزب سره د سولې تړون: له څلورو لسیزو جګړو او ناخوالو وروسته په افغانستان کې د سولې په برخه کی یو مهم او هیله بښونکی خبر د هېواد خلکو واورید چې د افغانستان د اسلامي جمهوریت او حزب اسلامي ترمنځ د سولې تفاهم لیک و. سره له دې چې دغه تفاهم لیک یو شمیر مخالفین هم لرل، خو د پلویانو په پرتله یې شمېره ډېر کم وه.

له حزب اسلامی سره د سولې هوکړه لیک افغانانو او نړیوالو ته په څو برخو کی ځانګړي پیغامونه لرل چې په هېواد کې د ټولو جګړو د پای لپاره یوه ښه پیلامه وه.

حزب اسلامي د هېواد په معاملاتو کې له پخوا راهیسې یو مهم اړخ و، له همدې کبله یې  دولت سره یوځای والی او سوله ستر بدلون او ښه پرمختګ وه.

له کومه چې په رسنیو او ټولنیزو خپرونو او د عامو خلکو په غبرګونونو کی لیدل کېده له دې هوکړې ښه پراخ ملاتړ موجود وه.

اوږدو جګړو نور د افغانستان خلک د سولې لپاره لیواله کړي و، نو له همدې کبله حزب اسلامي سره سوله ان ددې حزب د پخوانیو مخالفینو له لورې چې په دولت کې یې ونډه درلوده د هرکلي وړ وګرځېدهچی دا هم د تل پاتې او پایداره سولې لپاره یو ښه پیغام ګڼل و.

له حزب اسلامي سره سوله د دولت نورو وسله والو مخالفینو ته چې په جګړه بوخت دي هم یو ښه پیغام وه. چې دوی هم کولی شي په هېواد کې د سولې لپاره چمتوالی څرګند کړي.

د دولت او حزب اسلامي ترمنځ د سولې تفاهم لیک له پراخ نړیوال ملاتړ نه هم برخمن شو. امریکا، انګلستان او د ملګرو ملتونو سازمان د تفاهملیک له لاسلیک څخه وروسته له هغه خپل ملاتړ اعلان کړ. دغه غبرګون دا پیغام درلود چی نور نړیوال هم د افغانستان د سولې په برخه کی لیواله شوي او په دې توګه غواړي د افغانستان دغه اتلس کلن کړکیچ چی د ۲۰۰۱ کال د سپتمبر له مېاشت راهیسې پیل شوی نور پای ته ورسېږي.

د پاکستان هېواد هم چې د افغانستان په قضایاوو کې ډېر ښکېل ګڼل کېده داسې پیغامونه ورکول چې د افغانستان د سولې لپاره لیواله دی، بیلګه یې د نوموړي هېواد د لومړي وزیر څرګندونې وې چې په ملګروملتونو کې یې د افغانستان د ستونزو حل د سولې په خبرو کې ګڼلی. د یادولو ده چې پاکستان له خپل ګاونډي هېواد هند سره ډېر بوخت شوی وه. له بلې خوا د نړیوالو له لورې هم په ډېرو برخو کې تر فشار لاندې راوستول شو او هم یې اقتصادي ستونزو او کورنیو ناامنیو دې برید ته ورسولو چې د نوموړي هېواد راتلونکی او یووالی یې تر ګواښ لاندې راوستلی وه. نو ځکه دې ته اړشو چې نور په افغانستان کې له مداخلې لاس واخلي او د سولې لپاره لیوال شي.

په سيمه کې پراخ اقتصادي بدلونونه او خوځښتونه هم ددې لامل شول چې د سيمې نور هېوادونه لکه چين، ايران، د منځنۍ اسيا هېوادونه افغانستان کې د سولې لپاره مايله وي او په دې هېواد کې د ثبات له لارې وکولی شي دوي هم يو شمېر اقتصادي موخو ته ځان ورسوي.

په ټوله کې دغه او نور برابر شوي شرايط چې د ټولو يادونه به يی اوږد وخت وغواړي په افغانستان کې د سولې لپاره ښه او الهام بښونکي پيغامونه و.

په دې برخه کې نړيوال ملاتړ هم مهم شرط وه، له حزب اسلامي سره د سولې په برخه کې د نړيوالو ملاتړ په تېره بيا د امريکا متحده ايالتونو هرکلی دغه بهير خپلې وروستۍ موخې ته ورساوه.

دولت تل د سولې پلوی و او دی. په همدې اړوند له پخوا نه د سولې عالی شورا جوړه شوه د سولې لويه جرگه جوړه شوه، د سولې مشورتي لويه جرگه، د سولې په چارو کې ددولت وزارت او په دې برخه کی بيلابيل کميسونونه جوړشول او په بيلابيلو پړاوونو کی د خبرو اترو زمينې په هېواد کې دننه او بهر مساعدې شوې او دولت په کې گډون وکړ.

له حزب اسلامي سره سوله دا جوته کړه چې افغان دولت د سولې په اړوند رينښتيني او صادق دی. که نور د جگړې لورې هم وغواړي چې په دې برخه کې خبرې وکړي دولت ورته ښه راغلاست وايي .

## د کابل پروسه

د کابل پروسې لومړنۍ ناسته: د ١٣٩٦ هـ ش کال د غبرگولي په ١٦ او ١٧ کابل د کابل پروسې د لومړۍ ناستې کوربه و. دا نړيواله غونډه د افغان حکومت په نوښت رابلل شوې وه، چې په کې د ٢٥ هېوادونو ترځنگ د ٣ نړيوالو سازمانونو استازو هم گډون درلود او موخه يې په افغانستان کې د سولې او ثبات لپاره د

**یو چټر رامنځته کول و. د دې ناستې ګډونوالو په روانه جګړه کې د افغانستان له موقف ملاتړ اعلان کړ.**

**د کابل پروسې دویمه ناسته:** **د ۱۳۹٦ د کب په ۹مه، کابل د کابل پروسې دویمې ناستې کوربه و. افغان حکومت په دې ناسته کې وسله والو مخالفینو ته د سولې طرحه وړاندې کړه چې د امریکا متحده ایالتونو په ګډون د سیمې د یو شمېر نورو هېوادونو له لوري یې هرکلی وشو. په دې ناسته کې پر دې هوکړه وشوه چې د سولې خبرې به د افغانستان په ملکیت ترسره کېږي او ګډونوال یې کلک ملاتړ کوي. دا د سولې په تړاو د یوې اجماع د رامنځته کېدو زېری وه، چې افغان حکومت د دغو ناستو او سیمیزې اجماع له لارې ترلاسه کړ.**

**د کوچنی اختر اوربند: د افغانستان حکومت نړیوالو ځواکونو او طالب وسله والو د ۱۳۹۷ ه ش کال د کوچني اختر په ورځو کې موقتي اوربند وکړ. یاد اوربند د افغانستان د اوږدې جګړې په تاریخ کې بې مخینې و چې له برکته یې د تاوتریخوالي په کچه کې پام وړ کمی راغی، د هیواد په لر او بر کې د خوښیو لامل شو چې اکثر په کې حکومتي او طالب ځواکونو ګډه خوشالي کوله.**

**دې اوربند وښودله چې د دواړو لورو مشران پر خپلو ځواکونو پام وړ واک لري، او دا ځکه مهم دی چې مخکې هیڅ لورې هم د مقابل لوري پر انسجام باور نه درلود. جشنونو سولې ته د ځینو جنګیالیو په ګډون د افغانانو شدیده لېوالتیا وښوده. دا دواړه عوامل د سولې د راتلونکي بهیر له پاره ښه زېري وه. د کوچني اختر په درې ورځې رخصتۍ کې افغانستان د جګړې د عُمده لوریو له خوا د یوه تاریخي اوربند شاهد وو. د تاوتریخوالي په کچه کې غوځ کمښت له جګړې سترو افغانانو ته د عادي ژوند یو لنډ احساس ورکړ او په ټول هیواد کې د خوښۍ د جشنونو لامل شو.**

اوربند ثابته کړه چې سولې ته د کور دننه شدیده تقاضا موجوده ده، همداراز یې د افغان امنیتي ځواکونو او طالبانو دواړو په صف کې د مراتبو د سلسلې انسجام څرګند کړ چې د ډلګیو مشرانو یې که څه هم چې د جګړې د بندولو حکم ور ته حیرانوونکی وو، بشپړ اطاعت وکړ. ټولې غاړې باید له دغه فُرصت څخه د سولې په لور د حرکت کولو له پاره ګټه اخیستې وي. ولسمشر اشرف غني لا وړاندې له طالبانو سره د غیرمشروطو خبرو وړاندیز کړی و. د متحده ایالاتو حکومت دې ته چمتووالي وښود چې نیغ په نیغه د وسله والو مخالفینو له مشرانو سره خبرې وکړي، او ددې کار لپاره یې ځانګړی استازی زلمی خلیلزاد وټاکه .

له دوو بریدونو پرته چې د اسلامي دولت (داعش) د افغانستان څانګې کوچنۍ ډلې پر غاړې واخیستل. دا اختریز اوربند د وینې تویونې په کچه کې د پام وړ کمي لامل شو، مګر دغو بریدونو پر جشنونو لږ اغېز وکړ. حکومتي او طالب جنګیالیو یوه بل ته غېږې ورکړې، له یوه بل سره یې انځورونه واخیستل، ګډې سندرې او اتڼونه یې وکړل، او له یوه بل سره یې ګلان او ډالۍ تبادله کړې. د دوی پخلاینه که څه هم لنډه وه، اکثراً دوي د بیرغ په لاس جوپو جوپو ملکي وګړو له هرکلي سره مخ شول. لسګونه زره افغانان د خپلو ملګرو او خپلوانو د لیدنې لپاره د جګړې له کرښو واوښتل. دا خوښۍ په شمال او نورو هغو ځایونو کې چې د طالبانو وېره په کې تر نورو ځایونو ډېره وه، محدودې وې. مګر د هیواد زیاترو برخو، په ځانګړې توګه هغو سیمو کې چې تر ټولو بد تاوتریخوالي ځپلي، د خوښۍ او هیله منتیا هغه شیبې ولېدې چې له کلونو راهیسې یې نه پېژندې.

د ارامۍ په ترڅ کې د دواړو غاړو انسجام، په ځانګړې توګه د داسې یوه وسله وال مخالفت په منځ کې چې اکثراً وېشل شوې ښودل کیدل، د سولې د راتلونکو خبرو اترو له پاره ښه نښه وه.

د ولسمشر غني له خوا د اوربند د غځونې له وړانديز سره سره طالبانو له اختره وروسته جنګ بيا پيل کړ. مګر په دغه اوربند کې، که څه هم چې عمر يې لنډ وو، د سولې د راتلونکو هڅو له پاره ګټور درس نغښتی وو. د اوربند تودې نمانځنې په ډاګه کړه چې زياتره افغانان د جګړې پای ته څومره ژوره لېوالتيا لري. د حکومت او طالبانو پلي ځواکونه او قومندانان وليدل شول چې د جګړې د موقتې درېدنې له کبله يې خوښي څرګندوله. له يوه بل سره د دوی ګډوالي تر يوه بريده د هغه نظر له ناسمۍ پرده پورته کړه چې وايي جګړه د نه ماتيدونکي فکري وېش له کبله ده. د طالبانو په منځ کې د اوربند په اړه بحثونه په خپله ددغه تحريک دننه سولې او جوړجاړي ته د هڅونې څرګندويې وې.

له ټولو مهمه دا چې اوربند وښودله چې د دواړو لوريو مشران خپل حکم تعميلولی شي. که څه هم چې هېڅ لوري خپل ځواکونه د اوربند له پاره نه وو چمتو کړي، دواړو غاړو افغان حکومت، او طالبانو د حيرانوونکي نظم څرګندونه وکړه. دواړو لوريو له دې ډډه وکړه چې له زيانمنونکو شېبو نه په ناوړه ګټې اخيستنې ناڅاپي بريدونه وکړي. طبعاً د اختر درې ورځنی اوربند له هغه سياسي روغې جوړې څخه ډېر واټن درلود چې له دښمنانو سره په کې ستر جوړجاړی شوی و.

اختريز اوربند د جنګياليو په ګډون جګړه ځپليو افغانانو ته هغه څه وښودل، چې ښايي سوله يې له ځان سره راوړي. دا اوربند د خوځښت له نورو نښو سره په خوا کې رامنځته شو چې لومړۍ نښه يې د ولسمشر غني له خوا له طالبانو سره د بې شرطه خبرو وړانديز او ورپسې هغه نښې وې چې واشنګټن دې ته چمتووالي وښود چې له طالب مشرانو سره نېغ په نېغه وغږېږي، او د پوځيانو د وتلو موضوع په بحث کې شامله کړي. د متحده ايالاتو او طالبانو ترمنځ

مستقيمې خبرې کوم کيمياوي بوټی هم نه وه چې هر څه يې سم کړي وي. طالبانو بيا هم له کابل سره خبرو ته ننوتل لږ تر لږه په لومړي سر کې رد کړل.

## د سولې مشورتي لويه جرگه

د ټولو مخالفتونو او نانډريو سره سره د سولې له پار مشورتي لويه جرگه، د ۱۳۹۸ه ش کال د ثور د مياشتې په ۹ مه نېټه پيل او ۵ ورځې يې دوام وکړ. د جرگې موخه دا وه چې سوله تعريف کړي، حدود يې وټاکي او حکومت ته په دې اړه لازمې مشورې ورکړي. حکومت د جرگې پيل د سولې لپاره د بين الافغاني خبرو پيلامه وگڼله او په دې توگه يې کوشش وکړ چې د سولې په روانه پروسه کې له ځنډ څخه د خبرو مرکز ته ور ودانگي. ښکاره خبره وه چې حکومت د سولې په اړه خپل تعريف درلود او حدود يې هم ورته معلوم وه، اما د سولې لپاره د حکومت پر تعريف نه يواځې دا چې اجماع نه وه، بلکې د همدې تعريف له کبله د سولې په روانه پروسه کې د حکومت رول ضعيف او په ځينو مواردو کې د مخالفت تر حده رسېدلی وه. د عوامو لويې کتلې، سياسي گوندونو، مدني ټولنو، د هېواد پخواني ولسمشر حامد کرزي، او نورو نفوذ لرونکو شخصيتونو د سولې په اړه د حکومت د دريځ مخالفت کړی و او په دې اړه يې په ناغېړيو تورن کړی و. په دې اړه د افغان سولې لپاره د امريکا ځانگړي استازي زلمي خليلزاد هم پر حکومت مکررې نيوکې کړې وې. خو دا ټولې نيوکې بی اساسه وې د مخالفتونو، فشارونو او د سياسي انزوا په چاپېريال کې ولسمشر محمد اشرف غني مناسبه وليده چې د سولې په نامه د يوې مشورتي جرگې له لارې خپل موقف پياوړی کړي.

د جرگې د غړو او رييس انتخاب: حکومت اعلان وکړ چې د جرگې غړي به نيمه انتخابي بڼه ولري. د ۳۲۰۰ څخه نيږدې ۱۰۰۰ تنه له کابل او نورو يې له ولاياتو څخه په جرگه کې گډون وکړ. په ولاياتو کې يو کميسيون چې د والي

تر نظارت لاندې د ولایتي شورا مشر، د ولایت د ښځو چارو رییسه، د ولایت د علماوو د شورا مشر، د مدني ټولنې استازي او نور په کې شامل وو.

کله چې حکومت د مشورتي جرگې د راغوښتلو پرېکړه وکړه، له هماغه اوله سره ورسره مخالفتونه پیل شول. سیاسي گوندونو دا جرگه د اشرف غني ټاکنیز کمپاین وباله او د پرېکون اعلان یې ور سره وکړ. حامد کرزي که څه هم په لومړي سر کې د حکومت دا پرېکړه تایید کړه، خو وروسته یې جرگه غیر ضروري او پایلې یې مشکوکې وبللې. د حزب اسلامي مشر گلبدین حکمتیار هم مشورتي لویه جرگه غیر ضروري او د سولې پر وړاندې خنډ وباله. تر ټولو مهمه دا چې د حکومت اجراییه رییس عبدالله عبدالله شکایت وکړ چې جرگې په اړه ورسره مشوره نه ده شوې او جرگه به تحریم کړي.

ولسمشر غني د جرگې د ریاست لپاره استاد عبدالرب رسول سیاف غوره کړ چې د جرگې مشری په غاړه واخلي، ځکه چې سیاف هغه څوک وه. چې تر اوسه یې هم د جهادي رهبرانو په منځ کې خپل ځای درلود او هم د هېواد په سیاسي قشر کې یې تر اوسه درجه او حرمت شته. په علمي لحاظ هم د اسلامي علومو پروفیسور وه، او تاثیر لرونکې خطابه یې درلوده.

د جرگې تالار دننه وضعیت: د جرگې تالار ځانگړی پیغام درلود، جرگه یوه ملي غونډه وه . د ولسمشر او عبدالله عبدالله تصویر د سټېج پر سر ځوړند وو. د ملي ټلویزیون او نورو ټلویزونونو خبري پوښښ وو، د دې تر څنگ ټولو رسنیو ته اجازه وه چې تالار ته ورشي او گډون کوونکو سره خبرې وکړي. د جرگې تنظیموونکو پرېکړه کړې وه چې د کمېټو کار او خبرې به د بندو دروازو تر شا کیږي. دلیل یې دا وو چې گډون کوونکي باید پرته له ویرې او تشویش خپله خبره وکړي.

د بحث لپاره پوښتنې: د بحث لپاره د حکومت له خوا مشخصې پوښتنې وړاندې شوې وې چې باید ځواب شوې وی. کومې څلور پوښتنې چې د

حکومت له خوا د مشورې لپاره د جرګې ګډونوالو ته وړاندې شوې، په ترتیب سره د حکومت لپاره د موضوعاتو د اهمیت پر اساس لیکل شوې وې، او ترکیز یې پر هغو مسایلو وو چې په تېرو څو میاشتو کې د سولې په مذاکراتو کې حکومت پرې کلک درېدلی وو.

لومړی او تر ټولو مهمه موضوع دا وه چې څنګه طالبانو ته قناعت ورکړل شي تر څو سولې ته غاړه کېږدي: دلته موخه دا نه وه چې طالبان اصلاً سوله نه غواړي. موخه دا وه چې طالبان څنګه حکومت سره خبرو ته حاضر کړی شي. طالبانو د حکومت سره له ناستې انکار کړی وه او دا یې د خپلې جګړې د مشروعیت په ضرر ګڼلې وه. طالبانو ویل چې بین الافغاني مذاکرات موږ ته د عامو افغانانو او سیاسي احزابو سره د خبرو په معنی دي نه د حکومتي اشخاصو سره. په داسې حالت کې حکومت د جرګې له لارې وغوښتل پر امریکا او طالبانو فشار راوړي ترڅو حکومت، منحیث حکومت د خبرو یو طرف شي.

د دې پوښتنې لپاره د ګډونوالو ځوابونه مختلف وو خو ځینې د اشتراک ټکي په کې دا وو چې په افغانستان کې باید طالبانو ته دفتر پرانیستل شي، بهرني ځواکونه دې د تقسیم اوقات له مخې ووځي، اوربند دې وشي، او دواړه خواوې دې د اعتبار فضاء جوړونې لپاره بندیان خوشې کړي.

د بندیانو خوشې کول یو معقول عمل وه خو دا عمل طالبان د حکومت سره خبرو ته اړ نه کړای شول. په افغانستان کې طالبانو ته د دفتر پرانیستل د حکومت غوښتنه وه او دا هغه څه وه چې حکومت یې په اړه په وار وار اماده‌ګي ښودلې وه. خو په افغانستان کې طالبانو ته دفتر پرانېستل عملي نه وه، ځکه چې په سیاسي لحاظ طالبانو د حکومت تر سیوري لاندې خبرو ته زړه نه ښکاوه.

دوهمه مسله د ارزښتونو د ساتلو مسله وه: حکومت له جرگې مخکې د سولې په پروسه کې د اساسي قانون پر ساتلو او د ټاکنو پر کولو تاکيد وکړ. د حکومت دا دريځ په ضمني بڼه د امريکا، او په صريحه توگه د سياسي احزابو او مخورو شخصيتونو له خوا رد شوی وو. حکومت د مشورتي جرگې له لارې د خپل دريځ د مشروعيت هڅه وکړه او تقريباً په دې اړه جرگې د حکومت د دريځ ملاتړ وکړ. مشورتي جرگې د ډېرو مسايلو د ساتلو خبره وکړه خو د اساسي قانون ساتل، ټاکنې او نظام ساتل هغه څه وو چې حکومت په موجوده وخت کی ډېره اړتيا ورته درلوده.

درېيمه مسله د سولې د مذاکراتو لپاره د مذاکراتي ټيم د لېست د جوړولو بحث وه: حکومت په دې اړه د بحث ضرورت ځکه حس کړ چې د بين الافغاني خبرو لپاره په قطر کې پلان شوی مجلس د همدې ليست پر سر د نانديريو له کبله وځنډول شو. حکومت وغوښتل چې د جرگې له لارې ځينې ټکي را ټول کړي او په راتلونکي کې يې د ليست په جوړولو کې د افغانستان د خلکو د غوښتنې په توگه مسوليت پر غاړه واخلي. د نوموړې مسلې په اړه د جرگې ځواب ډېر عام وو چې په درېيو ټکو را څرخېده، ليست دې عام او ټول شموله وي، متخصصين دې په کې ځای پر ځای شي، د مشورتي جرگې غړي په کې شامل شي او لنډ دې وي. دا د جرگې هغه عامې غوښتنې وې چې جمهور رييس په خپلو اختتاميه خبرو کې ورته مناسب ځواب ورکړ.

څلورمه مسله د افغانستان په قضيه کې د دخيلو هېوادونو په اړه د حکومت د دريځ په اړه وه: دا مسله تخصصي او د جرگې د بحث له علمي او تخصصي صلاحيت څخه لوړه وه. د جرگې مشوره هم ډېره عامه او په ځينو مواردو کې د روان وضعيت په اړه د پوهې او درک د نه شتون له کبله غير واقعي او ايډيالستيکه وه.

پرېکړه لیک او د سولې په پروسه یې اغیز: له پنځو ورځو مشورو وروسته مشورتي لویې جرگې د ۲۳ فقریز پرېکړه‌لیک په نشر سره په افغانستان کې د تلپاتې سولې غوښتنه وکړه او وي ویل چې د سولې پروسې د ټولو ښکېلو اړخونو سره له تفاهم وروسته د بهرنیو ځواکونو مسولانه وتلو لپاره عملي مهال وېش تنظیم شي چې تراوسه پورې په دومره لوړه کچه د بهرنیو ځواکونو د وتلو موضوع نه وه مطرح شوې، په پرېکړه لیک کې د ملي بنسټونو او جمهوري نظام په ساتنه ټینگار شوی وو، د اساسي قانون ساتلو خو د اړتیا پر وخت یې د تعدیلېدو غوښتنه هم د جرگې د ۲۳ مادو پرېکړه لیک یوه برخه وه. د جرگې د پرېکړه لیک له مخې افغان دولت او طالبان باید د یو بل له بندیانو سره انساني چلند د بندیانو د تبادلې او خلاصون لپاره زمینه برابره کړي. د جرگې په پرېکړه لیک کې د روانې جگړې ختمولو لپاره د جگړې ښکېلو غاړو له خوا د یو بل پر ضد د تبلیغاتو درولو او د بېړني او دایمي اوربند اعلانېدو او تطبیقېدو ټینگه غوښتنه شوې وه.

همدا ډول د جرگې غړیو له سیاسي گوندونو، سیاسي جریانونو، اغېزناکو ملي شخصیتونو او د افغانستان له دولت څخه ووغوښتل چې د سولې بین الافغاني خبرو اترو ته دې له یو واحد او افغانستان شموله ادرس څخه دننه شي. په پرېکړه لیک کې د افغانستان له حکومت څخه غوښتنه وشوه چی له طالبانو سره مخامخ خبرو اترو لپاره یو بې طرفه پلاوی وټاکي چې په هغه کې جهادي او ملي شخصیتونه، متخصصین، تجربه لرونکي، جید علما او نېک شهرت والا خلک شامل وي او تعداد یې هم تر ۵۰ زیات نه وي.

جمهور رییس د جرگې په اختتامیه مراسمو کې وویل: چمتو دی چې د لویې جرگې د وړاندیز له مخې اوربند عملي کړي، خو دا اوربند به هغه مهال وي چې طالبان هم گام پورته کړي. ولسمشر جرگې ته په درناوي د طالبانو ۱۷۵ بندیانو د خوشي کیدو اعلان هم وکړ.

بې له شکه ددې جرگې په دايرېدو سره افغان حکومت د سولې په اړه خپله انزوا ختمه او بيرته يې ابتکار په خپل لاس کې واخيست. همدارنگه يې نړيوالو او طالبانو ته دا پيغام ورکړ چې په افغانستان کې سولې ته رسيدل، د افغان حکومت نه بغير ممکن نه دي.

په کابل کې د سولې مشورتي جرگه په داسې حال کې پای ته ورسېده، چې يوه اوونۍ مخکې له دې جرگې په مسکو کې د افغانستان د سولې په اړه د روسيې، چين او امريکا په گډون درې اړخيزه غونډه جوړه شوې وه او دوي په افغانستان کې د سولې په اړه گډې هوکړې ته رسېدلي وو. د روسيې د بهرنيو چارو وزارت له ادرسه خپره شوې اعلاميه کې راغلي وه چې له افغانستان څخه د بهرنيو ځواکونو پر مسوولانه وتلو او د افغان سولې په برخه کې د لومړۍ هڅې په توگه د اوربند پر اعلان ټينگار شوی وه. دې هېوادونو ژمنه کړې وه چې د ټولو افغانانو په گډون او د افغانانو په مشرۍ د سولې خبرو ملاتړ کوي او په دې برخه کې مرستې ته چمتو دي.

## له طالبانو سره د سولې لپاره د ملي وحدت حکومت لاسته راوړنې

د افغانستان حکومت د ۲۰۱۸م کال لومړيو کې د سولې لپاره زړور گامونه پورته کړل چې له کبله يې طالبان، امريکا متحده ايالات، د سيمې هېوادونه او نړيواله ټولنه تر خورا ډېر فشار لاندې راغلل.ددې فشارونو په نتيجه کې امريکا د افغانستان د سولې لپاره زلمی خليلزاد خپل ځانگړی استازی وټاکه.

د سولې لپاره د ملي، سيمه ايزې او نړيوالې اجماع په لور کې افغان ولسمشر ډيرې هلې ځلې وکړې، له نيکه مرغه د ولسمشر ټولو هڅو رنگ راوړ او له دې ټولو مثبتو او مثمرو هڅو وروسته د امريکا متحده ايالاتو د خارجه چارو وزارت ځانگړی استازی زلمي خليلزاد د طالبانو سره د مخامخ خبرو اعلان وکړ.

# د سولې په اړه د طالبانو دریځ

**د سولې په تړاو طالبانو تل له افغان حکومت سره منحیث د حکومت له مخامخ خبرو ډډه کړې او یوازې یې له امریکا سره پر مخامخ خبرو اترو ټینگار کاوه. که څه هم په لومړیو کې امریکا له دغې ډلې سره د سولې خبرو ته لېواله نه وه، خو د جگړې له اوږدېدو او ورځ تر بلې خونړي کېدو سره امریکا هم له دغې ډلې سره د سولې خبرو ته غاړه کېښوده**

**د افغان سولې په تړاو د امریکا او طالبانو ترمنځ خبرو کې طالبانو له لومړي سره تر هرڅه وړاندې په افغانستان کې د بهرنیانو د حضور په اړه پر خبرو اترو او یوې هوکړې ته پر رسېدو ټینگار وکړ، که څه هم د دواړو لورو ترمنځ اته ځله مخامخ خبرې وشوې او د دغو خبرو اترو په لړ کې ډېر کله رسنیو داسې رپوټونه خپاره کړل، چې گواکې امریکا او طالبانو په افغانستان کې د بهرنیانو د حضور له قضیې ورهاخوا، د بین‌الافغاني خبرو د پیل، اوربند او لنډمهاله حکومت د جوړېدو په تړاو هم خبرې اترې کړې دي؛ خو طالبانو تل دا رپوټونه ردول.**

**د سولې په تړاو د طالبانو دریځ دا وه، چې لومړی به له امریکا سره په افغانستان کې د بهرنیانو د حضور د پای ته رسولو په اړه یوې هوکړې ته رسېږي. وروسته به بین‌الافغاني خبرې (د طالبانو او ټولو افغان سیاسي ډلو ترمنځ وي، نه دا چې یوازې د افغان حکومت او طالبانو ترمنځ وي) پیلوي.**

**په دې تړاو په مسکو او قطر کې د طالبانو او مختلفو افغان سیاستوالو او جهادي مشرانو گډه ناسته یې لومړنی گام بلل کیده.**

**د افغان سولې په تړاو د بین‌الافغاني خبرو د پیل په موخه د افغان حکومت او طالبانو په دریځونو کې خورا توپیر لیدل کېده.**

# د افغانستان د سولې لپاره د امریکا متحده ایالاتو د ځانګړي استازي ټاکل

د زلمی خلیلزاد پیژندنه: زلمی خلیلزاد د بلخ ولایت په مزار شریف کې د ۱۹۵۱م کال د مارچ د میاشتې په ۲۲ مه نیټه زیږیدلی. د پلار لخوا د لغمان ښودل شوی او په لغمان کې پښتون بلل شوی، خو د دې خبرې اصلیت لا تراوسه پورې نه دی څرګند ځکه چې امریکا خپل د ګټو ساتلو لپاره د انسانانو اکر هم بدلوي رابدلوي، د پلار په هکله یې دا ویل شوي چې د محمد ظاهر شاه په وخت کې یو پوځي جګپوړی غړی وو. خلیلزاد په انګریزي، پښتو، فارسي او عربي کې روان غږیدای شي. خلیلزاد یوې اتریشۍ سیاستوالې او لیکوالې سره په کال ۱۹۷۲م کې واده وکړ د خلیلزاد د ماندینې نوم شېرل بنارډ ده او دواړو په یوه پوهنتون کې زده کړې پرمخ وړي، د دوی دوه ماشومان دي چې یو یې الکسندر نومېږي چې زوی دې او لور یې ماکسیمیلین نومېږي.

خلیلزاد خپلې لومړنۍ زده کړې له غازي لېسې څخه په کابل کې پیل کړې، بیا یې وروسته د کلفورنیا ایالت منځنۍ زده کړو ښوونځي ته د AFS اې اېف اېس لخوا چې د بین الکولتوري تبادله ییز بهیر لړۍ ده ور مخه کړه. خلیلزاد د لبنان په امریکایي پوهنتون کې خپله د لسانس او ماسترۍ زده کړې ترسره کړې. همدارنګه یې خپله دوکتورا په سیاسي علومو کې د شیکاګو پوهنتون څخه په بري ترسره کړي .

خلیلزاد له ۱۹۷۹م کال څخه تر ۱۹۸۹م کال پورې د کولمبیا پوهنتون په نړیوال ښوونځي کې د عامه اړیکو زده کړو څانګې کې مرستیال پروفیسر وو. په هماغه پېر کې ده د جیمي کارټر په اداره کې د زبګنیو برېژنسکي سره یوځای کار کاوه . د جېمي کارټر اداره د افغان مجاهدینو د پالیسي چوکاټ

جوړوونکي وه چې د پخواني متحدې روسیې په مقابل یې مقاومتي جګړه پیل کړې وه. په ۱۹۸۴م کال کې خلیلزاد د یو قونسلي مشاور دنده د بهرنیو اړیکو څانګې کې ومنله او د امریکې سټېټ ډیپارټمنټ ( کورنیو چارو دولتي اداره ) سره د منځیني ختیځ او سوېلي اسیا په هکله د مشاور په توګه دنده د ریچارډ مرفي تر مشرۍ لاندې درلوده. له ۱۹۸۵م کاله تر ۱۹۸۹م کال پورې خلیلزاد د رونالډ ریګن په اداره کې د سټېټ ډیپارټمنټ لخوا د متحدې روسیې په مقابل کې د جګپوړي مشاور او لارښود دنده درلوده همدارنګه یې د ایران او عراق جګړو پر مهال هم مشاور و.
په همدې مهال دی د سټېټ ډیپارټمنټ لخوا افغانستان لپاره د پالیسي او پلان جوړونې ادارې څانګړی استازی او د همدې ادارې د پازوال مایکل ـ اېچ ـ ارمکوسټ مرستیال سکرتر و. د دغې دندې موخه دا وه چې مجاهدینو لپاره نړېواله مرسته راټوله کړي او د مجاهدینو شهرت د متحدې روسیې په خلاف جګړه کې په نړېواله کچه ور زیات کړي. خلیلزاد د جورج بوش د واکمنۍ په وخت کې په ملګرو ملتونو کې د امریکا د متحده ایالتونو سفیر و. همداراز هغه د ۱۹۸۰ کالونو را په دېخوا په سپینه ماڼۍ، سټېټ ډیپارټمېنټ او پېنټاګون کې د امریکا د تګلارې جوړولو د ډلې غړی هم پاتې شوی. د امریکا د پخواني ولسمشر جورج ډبلیو بوش د حکومتولۍ په وخت کې د امریکا د متحده ایالاتو په مسلمانانو کې تر ټولو لوړ پوړی مسلمان چارواکی پاتې شوی چې تر ټولو لوړې دندې یې د افغانستان او عراق لپاره د امریکا د متحده ایالتونو د سفیر او په ملګرو ملتونو کې د امریکا د سفیر په توګه دندې د یادولو وړ دي.
په ۲۰۱۸م کال کې د امریکا د ولسمشر ډونالد ټرمپ لخوا د افغانستان د سولې لپاره د امریکا د بهرنیو چارو وزارت د ځانګړی استازی په توګه وټاکل شو.

خليلزاد هڅه کوله چې افغان سولې لپاره سيمه ييزه اجماع رامنځته کړي او د نوموړي د ماموريت يوه موخه هم دغې اجماع ته کار کول وو.

د زلمی خليلزاد د دندې پيل: په قطر کې د امريکا او طالبانو ترمنځ له لومړي، دوهمې، دريمې، څلورمې، پنځمې، شپږمې او ومې ناستې را وروسته، زلمی خليلزاد څو ځله کابل ته په سفر راغی، تر څو له افغان سياستوالو او حکومتي چارواکو سره د سولې په تړاو خبرې وکړي. نوموړي د ولسمشر غني په ګډون له يو شمېر دولتي چارواکو، افغان سياستوالو، جهادي مشرانو، افغان مېرمنو، ځوانانو او د مدني ټولنو له استازو سره کتلي وه او د سولې بهير په تړاو يې بحثونه کړي ول.

خليلزاد افغانستان ته د سفر پر مهال له بي بي سي سره په خبرو کې ويلي وو: چې د افغان سولې په تړاو د روانو خبرو په لومړيو اوو پړاوونو کې هغه مسايل مطرح شوي چې په طالبانو او د امريکا په حکومت پورې اړه لري، خو له دې هاخوا پر نورو مسايلو هر ډول بحث کې بايد افغان حکومت موجود وي، د سولې پر يوه پلان کار وشي او د همدې پلان له مخې لومړی ښکېلې غاړې يوه سياسي جوړجاړي ته ورسېږي او اوربند اعلان شي.

واشنګټن او افغان سوله: امريکا د افغانستان د روانې جګړې د يوه اصلي او مهم اړخ په توګه له ۱۷ کلونو وروسته پرېکړه وکړه چې نور له دغې جګړې ځان وباسي، له همدې امله يې په ۱۳۹۷ه ش کال کی له طالبانو سره خبرې پيل کړې.

د افغان جګړې د پای ته رسولو په موخه لومړی پړاو د امريکا طالبانو ترمنځ مخامخ خبرې وې. د دغو خبرو له اتمې ناستې را وروسته داسې ويل کېدل چې دواړه لوري په دوو مواردو، له افغانستانه د بهرنيو ځواکونو وتل او دا چې په راتلونکي کې به د افغانستان خاوره د نورو پر ضد نه کارول کېږي يوې

عمومي هوکړې ته سره رسېدلي او د دې هوکړې مسوده هم د دواړو لورو ترمنځ لاسليک شوه.

امريکا غوښتل چې د افغانستان په قضيه کې ټول ښکېل افغاني لوري په خپل منځ کې سره کېنوي، ترڅو په راتلونکي کې د واک پر سر له يو بل سره ښکېل نه شي.

کوم ډول سوله؟: د سولې څرنګوالی او ډول هغه وخت معنی ورکوي چې د جګړې پر لاملونو متمرکزه شي. هغه سوله چې د جګړې عوامل په اساسي توګه له منځه يوسي دوامداره سوله بلل کېدای شي.

## په قطر کې د طالبانو او امريکايانو ترمنځ د سولې مذاکرات

لومړی پړاو: د دواړو اړخونو ترمنځ خبرې لومړی ځل ۲۰۱۸م کال د اکتوبر د مياشتې پر ۱۲مه نېټه د قطر دوحه کې پيل شوې.

دوهم پړاو: ددويم پړاو خبرې د ۲۰۱۸م کال د نومبر پر ۱٦مه بيا د قطر په کوربتوب په دوحه کې وشوې.

دريم پړاو: د ۲۰۱۸م کال ددسمبر پر ۱۷مه ددريم پړاو خبرې د متحده عربي اماراتو ابوظبی ښار کې ترسره شوې چې درې ورځې يې دوام وکړ او طالبانو افغان پلاوي ته خبرو کې د ګډون اجازه ورکړه.

څلورم پړاو: د ۲۰۱۹م کال د جنوری مياشت کې د څلورم پړاو خبرې د قطر دوحه کې وشوې.

پنځم پړاو: د پنځم ځل لپاره طالب او امريکايي استازي د ۲۰۱۹م کال د فبروری پر ۲۵مه دوحه کې سره جرګه شول، زلمي خليلزاد په لومړي ځل د طالبانو د تحريک له مرستيال ملا عبدالغني برادر سره دوحه کې وکتل. ددې پړاو خبرې ۱٦ ورځو ته وغځيدې.

شپږم پړاو: دې پړاو کې نهه ورځې خبرې وشوې او د غوايي د مياشتې پر ۱۹مه پای ته ورسيدې. دواړو خواوو اعلان وکړ چې دا ځل خبرو کې ډېر پرمختګ وشو.

اووم پړاو: خبرې د جون د مياشتې پر ۳۰مه دوحه کې پيل شوې او څو ورځې يې دوام وکړ. ددغه پړاو خبرو کې دواړو خواوو نور پرمختګ هم وکړ او پر ځينو مسايلو يې نظرونه سره يو شول.

اتم پړاو: د اګست پر دريمه پيل شوې د زلمی خليلزاد په وينا له طالبانو سره يې خبرې ګټورې وې او پر تخنيکي جزياتو يې خبرې وکړې خو د اټکلونو خلاف دا ځل هم ددې خبرو په پاي کې کوم مهم پرمختګ اعلان نه شو.

نهم پړاو: د اګست پر ۲۲مه پيل شوې او د سپتمبر تر لومړۍ يې دوام وکړ. په دې خبرو کې امريکايانو او طالبانو په اصولو کې يوې خپلمنځي هوکړې ته ورسيدل. زلمي خليلزاد وويل که د امريکايانو او طالبانو ترمنځ د سولې هوکړه په سمه توګه پلې شوه او شرايط سم وو. په افغانستان کې ميشت امريکايې پوځيان به د ۱۳۵ ورځو په ترځ کې له ۵ پوځي اډو ووځي.

خو په خواشينۍ سره بايد ووايم چې:

د پخو تجربو لرونکي ماهر ديپلومات ښاغلی خليلزاد د طالبانو سره خبرو اترو په ترځ کې هم په ځان ملنډې وهلې او هم پر طالبانو. د يوه زبرځواک هېواد استازی د کومو نړيوالو معيارونو پر اساس د يوې ډلې څخه غواړی چې د هغه هېواد نه به پر امريکا بريد نه کيږی چې واک يې د بل چا يعني افغان حکومت په لاس کې وي او دا حکومت هم ټولې نړي له هغې جملې امريکا، روسيه، چين، المان، فرانسي، انګلستان، ايټاليا،کاناډا، جاپان، هندوستان، پاکستان، اماراتو، سعودي، قطر او ايران په رسميت پيژندلی وي؟

او همدارنګه د کومو معیارونو پر اساس د خپلو قواوو د ایستلو خبره د طالبانو سره کوي،کله چې د حضور مشروعیت یې د افغان حکومت څخه اخیستی وي؟

او په کومو عقلی دلایلو له طالب څخه غواړی چې د القاعدې او داعش سره اړیکې پرې کړي، په داسی حال کې چې د القاعدې او داعش ایډیالوژی د طالب ایډیالوژی ده، مانا دا چې طالب دې ځان نفی کړي؟

تر ټولو د خندا وړ یې داده چې په دې چپه دنیا کې نور له طالبانو غواړي چې د افغان حکومت سره د سولې خبرو ته کیني او طالبانو دوه پښې په یوه موزه کې کړي، چې نه، افغان حکومت موږ په رسمیت نه پیژنو او خبرې نه ورسره کوو.

## افغان سوله د افغان حکومت، امریکا او سیمې د همغږۍ اړتیا

امریکایي چارواکو د روسیې، چین او اروپایي ټولنې له استازو سره د افغان سولې په تړاو دوه ورځنۍ خبرې اترې درلودې. د دغو خبرو په اړه زلمي خلیلزاد پر خپله توېټرپاڼه لیکلي وو چې موږ د افغانستان د خپلواکۍ درناوی کوو، د افغانانو لپاره سوله غواړو او د یوه داسې افغانستان غوښتونکي یو چې بیا دغه هېواد هېڅکله زموږ لپاره د ګواښ سرچینه نه وي

د امریکا د بهرنیو چارو وزارت هم د دغو خبرو په تړاو په یوه خپره کړې اعلامیه کې ویلي و چې د امریکا د بهرنیو چارو وزارت چارواکو د (۲۰۱۹م کال د مارچ ۲۱ او ۲۲مه) په واشنګټن کې د افغانستان د سولې، نېکمرغۍ او امنیت په برخو کې د چین، روسیې او اروپایي ټولنې له چارواکو سره خبرې کړې. په بیانیه کې ویل شوي وو چې دوي د افغانستان خپلواکۍ، استقلال او ځمکنۍ بشپړتیا ته درناوی لري او دغه هېواد به خپلې سیاسي، امنیتي او اقتصادي پرېکړې په خپله کوي.

په ورته وخت کې د افغانستان لپاره د روسيې ځانګړي استازي ضمير کابلوف له دغو دوه‌ورځنيو خبرو وروسته ويلي وو چې له افغانستانه د بهرنيو ځواکونو له وتلو او اوربند وروسته به بيا دغه هېواد ته جګړه را ونه ګرځي د افغان سولې په پروسه کې د سيمې د هېوادونو ارزښت، د دغو هېوادونو ګټې او دا چې افغان سوله د امريکا، افغان حکومت او سيمې د هېوادونو همغږۍ ته څومره اړتيا لري، هغه موضوعات دي چې دلته مي پرې بحث کړی دی.

افغان سوله او سيمه ييزې ګټې : د افغانستان موقعيت ته په کتلو سره د دغه هېواد سوله او ثبات د سيمې پر امنيت او ثبات اغېز لرونکی دی. له تېرو شاخوا څلورو لسيزو راهيسې روانې جګړې هم وښوده چې يو نا ارام افغانستان، د سيمې د ثبات په ګټه نه دی له همدې کبله په اوس‌مهال کې تقريباً د سيمې ټول هېوادونه په رسمي توګه د افغانستان سوله او ثبات په خپله ګټه بولي.

که څه هم د سيمې د هر هېواد ګټې په افغانستان کې بېلابېلې دي او تر ډېره د افغانستان په قضيه کې له همدې امله ننګونې هم زياتې دي، خو بيا هم په ټوله کې له پورتنۍ خبرې سره چې د افغانستان سوله او ثبات ده، ټول موافق دي.

د بېلګې په توګه روسيه او چين دواړه غواړي په اوږده مهال او منځ‌مهال کې امريکايي سرتېري په افغانستان کې نه وي او له همدې امله د امريکا او طالبانو له خبرو هم ملاتړ کوي، خو له افغانستانه په چټکه توګه د بهرنيو ځواکونو وتل بيا هم د خپلو ګټو لپاره ګواښ ګڼي. ځکه دا به په افغانستان کې د واک تشه رامنځته کړي او د دې وېره شته چې هېواد به د ۹۰مې لسيزې په څېر بيا د بحران پر لور بوځي.

په بل اړخ کې پاکستان د ملي وحدت حکومت او هند ترمنځ له ګرمو اړيکو خوښ نه وو او نه دي، پاکستان غواړي چې دغه ګرمې اړيکې همداسې ګرمې

پاتې نه شي او په افغانستان کې د هند اغېز راکم شي. له همدې کبله پاکستان په افغانستان کې د یوه داسې نظام هیله لري، چې دوی پرې نفوذ ولري.

په سیمه کې ایران هم د روسیې او چین په څېر په افغانستان کې د بهرنیو ځواکونو له حضوره اندېښنې لري. دغه راز همدا درې واړه هیوادونه له دې هم اندېښنه لري چې شاید امریکا به د داعش تر شا لاس ولري. همدا لامل دی چې د داعش د فعالیت له زیاتوالي سره دوي له طالبانو سره اړیکو غځولو ته اړ شول، ترڅو له دې لارې پر امریکا فشار راوړي.

په افغان سوله کې د سیمې د همکارۍ ارزښت: که څه هم د افغان سولې په تړاو د امریکا او طالبانو روانې خبرې او توافق په افغانستان کې د جګړې پای ته رسېدو په برخه کې ورځ تر بلې هیله بښونکې کېده، خو په ورته وخت کې بیا په دې پروسه کې د سیمې د هېوادونو رول هم له پامه نه شي غورځول کېدای. په افغانستان کې د روانې جګړې پېچلتیا او ښکېلو ډلو ته په کتلو سره داسې ښکاري چې په دغه هېواد کې د سولې او ثبات لپاره د سیمې د ځواکمنو هېوادونو همکاري، پوره ارزښت لري او یو اړین ګام دی چې پورته کول یې د افغان سولې له پروسې سره مرسته کولی شي.

د افغان سولې په تړاو له طالبانو سره د امریکا د مخامخ خبرو پیل او د زلمی خلیلزاد سفرونه ښودله چې امریکا هم د افغان سولې په برخه کې د سیمه‌ییزو هېوادونو پر ارزښت قایله ده. دغه راز امریکا هڅه کوله چې د افغان سولې په تړاو د سیمې د هېوادونو اندېښنې کمې کړي او په دې برخه کې یې ملاتړ ترلاسه کړي.

د دې ترڅنګ د امریکا او طالبانو ترمنځ د روانو مخامخ خبرو اترو په تړاو هم انګېرنې دا وې چې د دواړو لوریو ترمنځ که هوکړه کېدونکې وي، د سیمې ځینې ځواکمن هېوادونه به د دې هوکړې د تطبیق تضمین کوونکو په توګه ډګر ته رامخته کېږي. په دې تړاو، د چین، روسیې او اروپایي ټولنې له

**استازو سره د خلیلزاد له خبرو وروسته، د افغانستان لپاه د روسیې ځانګړي استازي ضمیر کابلوف خبریالانو ته وویل چې، طالبان هڅه کوي باوري شي چې روسیه او یو شمېر نور هېوادونه د دوي او امریکا ترمنځ د احتمالي هوکړو تضمین کوونکي دي.**

**پر دې ټولو سربېره، د افغان سولې په تړاو خبرو کې افغان طالبان هم د تضمین کوونکو په توګه د سیمې هېوادونو ته اړتیا درلوده او لري یې، تر څو نړیوالو ته د دوي له لوري هم د تضمین کوونکي رول ادا کړي.**

**په قطر کې له طالبانو سره د سولې د مذاکراتو پایله: د نهم پړاو خبرو د پای ته رسولو سره بعضو رسنیو احوال ورکړ چې د امریکا او طالبانو ترمنځ یوه هوکړه لیک لیکل شوی چې، په دې سره زلمی خلیلزاد کابل ته راغی او ولسمشر سره له طالبانو سره د جوړې شوې هوکړې مواد شریک کړل. چې دا هوکړه د ولسمشر غني او حکومتي چارواکو له غبرګون سره مخ شوه ځکه چې د موقت حکومت په راتګ د ملي اردو په منحل کېدو او د جمهوریت د منځه وړلو باندې هوکړه شوې وه.** [22]

---

[22]: موقت یا انتقالي حکومت: هغه حکومتي سیستم ته ویل کیږي چې په اظطراري شرایطو یا د حکومت تر پاشل کېدو یا هم د سیاسي خلا د رامنځنه کیدو پر مهال په موقت ډول جوړیږي.په لومړي ځل په ۱۸۱۴کال کې د موقت دولت عنوان د شارل تالیران له لوري په فرانسه کې وکارول شو.موقتو یا لنډمهاله حکومتونو په ځینو هیوادونو کې ښه نتیجه ورکړې، خو په ځینو نورو کې د بې ثباتۍ او بحران لامل شوي.چې افغانستان د طالبانو د واکمني تر سقوط وروسته د موقت حکومت تجربه وکړه چې د کورنیو جګړو او د هیواد د بربادي لامل وګرځیده.

ولسمشر ډونلډ ټرمپ د ۱۳۹۸ کال د وږي ۱٦مه د له طالبانو سره د نهايي شوې مسودې په اړه مذاکرات او د هغه په وينا له لوړپوړو طالب مشرانو ليده کاته لغوه کړل.

د امريکا او طالبانو له نهو مياشتو او نهه پړاوو سترې کوونکو مذاکراتو وروسته دواړه لوري وتوانيدل چې د سولې مسوده بشپړه کړي،خو دغه خبرې  او د روانې جګړې د پای ته رسولو ټولې هڅې يوازې په دې بهانه له منځه يوړې چې طالبانو يو امريکايې عسکر وژلی دی.

زما په نظر د ټرمپ دا دليل ډير د منلو نه برېښېده، ځکه امريکا د طالبانو د سختو جګړو او ټينګ مقاومت له امله له طالبانو سره خبري روانې ساتلې وې .

خو اصلاً د طالبانو او امريکا ترمنځ د سولې مسوده ولسمشر غني او افغان دولت ته د منلو نه وه ځکه چې دې مسوده کې د افغانستان په بربادي پريکړه شوي وه. او دوهم ګندمک تړون په څير وه.

ولسمشر له زلمی خليلزاد سره په کابل له کتنې وروسته وويل چې سوله غواړي خو د جمهوريت د نفي کولو په بيه نه، ولسمشر وويل د امريکا او طالبانو ترمنځ هوکړه کې د اسلامي امارت په نامه د طالبانو يادول که په هره موخه وي په نامستقيم ډول طالبانو ته ددولت بڼلو د حيثيت په معنا ده.

زما په نظر دا د افغانستان د خلکو لپاره د منلو نه ده او د افغانستان د ملي حاکميت او اساسي قانون سرغړونه ګڼل کيږي او هيڅوک حق نه لري چې زموږ ملي حاکميت تر پوښتنې لاندې راولي.

ولسمشر وويل افغان حکومت د سولې بهير کې د هر هغه پرمختګ ملاتړ کوي چې د تلپاتې سولې پايله او د جګړې په ختميدو تمام شي. ولسمشر د طالبانو او امريکا ترمنځ د هوکړې په اړه د افغانستان حکومت اصلي انديښنه داده چې تر هوکړې وروسته د ممکنه رامنځ ته کيدونکو خطرونو مخه څنګه ونيول شي.

د امریکا او طالبانو ترمنځ د سولې د مذاکراتو بیا پیل: د امریکا او طالبانو ترمنځ د سولې د مذاکراتو لړۍ ددوهم ځل لپاره د ۱۳۹۸ ه ش کال د لیندي د میاشتې په ۱۴مه نیټه پیل شوې. چې د ډېرو خبرو اترو وروسته د یوې اونۍ لپاره په افغانستان کې د تشدد پر کموالي توافق وشوه.
د تشدد د کموالي له اونۍ څخه وروسته افغان طالبانو او امریکا د افغان سولې په تړاو خپلمنځي هوکړه د ۲۰۲۰ م کال د فبرورۍ پر ۲۹مه نېټه د قطر په پلازمینه دوحه کې د ګڼ شمېر هېوادونو او نړیوالو بنسټونو د استازو په ګډون په یوه لویه غونډه کې لاسلیک کړه.
دې غونډې ته په قطر کې د طالبانو د سیاسي دفتر مشر ملا عبدالغني برادر او د امریکا د بهرنیو چارو وزیر مایک پمپیو ویناوې وکړې. هوکړه لیک د امریکا له خوا د افغان سولې لپاره د امریکا د بهرنیو چارو وزارت ځانګړي استازي زلمي خلیلزاد او د طالبانو له خوا ملا برادر لاسلیک کړ.
ملا برادر دې غونډې ته په وینا کې وویل، طالبان د دې هوکړې عملي کولو ته ژمن دي. ده هیله وښودله چې د بهرنیو ځواکونو له وتلو وروسته به افغانان د اسلامي نظام په سیورې کې د ارام سا واخلي.
د امریکا د بهرنیو چارو وزیر مایک پمپیو دې غونډې ته وویل چې امریکا، نړیواله ټولنه، افغان حکومت، افغانان، افغان سیاستوال او طالبانو ته په کار دي چې د سولې لپاره جدي کار وکړي او قرباني ورکړي.
د دې هوکړې له لاسلیک څخه وروسته د طالبانو مشر هیبت الله اخوند یو پیغام خپور کړ، او د طالبانو مشر په خپل پیغام کې له امریکا سره هوکړه "فتح او الهي نصرت بللې وه او دایې له شرعي اصولو او نړیوالو معیارونو سره سمه بللې وه.

## د امريکا او طالبانو ترمنځ د هوکړې مهم ټکي

۱. د افغانستان خاوره به د امريکا او د امريکا د کوم بل متحد پر ضد نه کارېږي، او دې هوکړه کې په دې تړاو تضمين او د عملي کولو مېکانيزم ياد شوي وو.

۲. له افغانستانه د ټولو بهرنيو ځواکونو د وتلو په تړاو تضمين او د دې چارې د عملي کولو مېکانيزم په دې هوکړه کې ياد شوی وو.

۳. کله چې پورته دواړو برخو کې د نړيوالو شاهدانو پر وړاندې تضمين ورکړل شي او اعلان وشي، د طالبانو اسلامي امارت چې امريکا يې د يو دولت په توګه نه پېژني او طالبان يې بولي، له افغان حکومت سره د همدې کال د مارچ د مياشتې پر لسمه نېټه به خبرو ته کېني. خو دا چاره يې عملي نه کړه.

# اتم څپرکی

## ټاکنیزې ډلې او د ۱۳۹۸ کال ولسمشریزو ټاکنو برخلیک

د افغانستان د ټاکنو خپلواک کمیسیون د پرېکړې پر بنسټ، ولسمشریزې ټاکنې د ۱۳۹۸هـ ش کال د میزان په ٦ مه ترسره شوې. د دې کمیسیون له لوري د اعلان شوي مهال وېش له مخې د ولسمشریزو ټاکنو لپاره د نوماندانو د نوم لیکنې لړۍ د ۱۳۹۷هـ ش کال د جدې له لومړۍ تر ۳۰مې نېټې پورې وه.
که څه هم په دغه موده کې د ټاکنو له کمیسیون څخه ۷۰ کسانو د نوماندۍ معلوماتي کڅوړې ترلاسه کړې وې، خو په دې ډله کې یوازې ۲۰ کسان د ټاکنو کمیسیون ته د نوماندۍ په موخه ورغلل چې په شرایطو برابر ۱۸ تنه یې راتلونکې ولسمشریزو ټاکنو ته نوماند شول .
ولسمشریزو ټاکنو ته د ۱۸ نوماندانو په منځ کې د ځینو ټاکنیزو ډلو تشکیلاتي جوړښت د توقع خلاف را څرګند شو. ځکه د داسې کسانو ترمنځ ټاکنیزې ډلې رامنځته شوې چې په تېر کې یې له یو بل سره ژور سیاسي اختلافونه درلودل او پر یو بل یې مختلف تورونه لګولي ول.
ځواکمنې ټاکنیزې ډلې: په افغانستان کې د تېرو ټاکنو تجربې، راتلونکو ټاکنو لپاره رامخته شوې ټاکنیزې ډلې، د دغو ډلو تشکیلات جوړښتونه او په ټوله کې د هېواد روان وضعیت او د ټاکنو کمیسیون ظرفیت ته په کتلو سره د

ولسمشریزو ټاکنو برخلیک، هغه مسایل دي چې دلته یې په اړه بحث شوی دی.

د ټاکنو تېرې تجربې: په افغانستان کې د طالبانو د رژیم له را پرځېدو وروسته په ۱۳۸۳هـ ش کال کې په لومړي ځل د ولسمشرۍ ټاکنې او په ۲۰۰۵م کال کې پارلماني ټاکنې وشوې. هغه مهال دغه ټاکنې په افغانستان کې د ملګرو ملتونو د دفتر له خوا د ټاکنو د تنظیم له ګډ دفتر سره په همغږۍ اداره کړل شوې.

د ۱۳۸۳هـ ش کال د ثور په ۱۱مه د پخواني ولسمشر حامد کرزي د ۲۱مې ګڼې فرمان له مخې د افغانستان د ټاکنو خپلواک کمیسون جوړ شو. د اساسي قانون د ۱۵٦مې مادې پر بنسټ، دغه کمیسیون په افغانستان کې د ټولو ترسره کېدونکو ټاکنو د ادارې، څارنې او د خلکو د رایو پر بنسټ، د پرېکړو مسوولیت لري.

د ټاکنو د خپلواک کمیسیون له جوړېدو تمه دا وه چې په راتلونکي کې به د ټاکنو پر مهال د ستونزو او درغلیو مخه ونیول شي. ځکه د ۱۳۸۳هـ ش کال په ولسمشریزو ټاکنو کې د درغلیو په اړه ځینې شکایتونه موجود وو، خو د ۱۳۸۸ او ۱۳۹۳هـ ش کال ولسمشریزو او د ۱۳۹۷هـ ش کال پارلماني ټاکنو ته په کتلو سره ښکاره شوه چې په دغه پروسه کې ستونزې، درغلۍ او لاسوهنې د پخوا په پرتله لا زیاتې شوې وې.

د ټاکنو خپلواک کمیسیون په ۱۳۸۸هـ ش کال کې د ولسمشرۍ او ولایتي شوراګانو ټاکنې ترسره کړې، د دغو ټاکنو پر مهال د دوو مخکښو نوماندانو حامد کرزي او عبدالله عبدالله ترمنځ د ټاکنو د پایلو پر سر ډېرې ناندرۍ رامنځته شوې، خو بالاخره حامد کرزی د دویم ځل لپاره د افغانستان د ولسمشر په توګه وټاکل شو.

د ټاکنو خپلواک کمیسیون په رهبرۍ په ۱۳۸۹هـ ش کال کې پارلماني ټاکنې هم ترسره شوې. په دغو ټاکنو کې د درغلیو ستونزه لاجدي شوه. ان تر دې چې په پارلماني ټاکنو کې د پراخو درغلیو د څېړنې لپاره ځانګړې محکمه جوړه شوه.

د ۱۳۹۳هـ ش کال په ولسمشریزو ټاکنو کې د ټاکنو کمیسیون تر بل هر وخت له سختو نیوکو او تورونو سره مخ و. په ټاکنو کې محمد اشرف غني او عبدالله عبدالله دوه مخکښ نوماندان وو چې په لومړي پړاو کې هېڅ یوه هم د بریا رایې خپلې نه کړې. په دویم پړاو کې یې هم یو پر بل د درغلیو د تورونو لګولو له کبله کیسه لا خرابه شوه چې بلاخره د دواړو لورو ترمنځ د امریکا د بهرنیو چارو پخواني وزیر جان‌کیري په منځګړیتوب، د ملي یووالي حکومت په نوم ګډ حکومت رامنځته شو.

## د ۱۳۹۸ ه ش کال ټاکنیزې ډلې

په افغانستان کې د ۱۳۹۸ ه ش کال ولسمشریزو ټاکنو لپاره ۱۸ کسانو ځانونه نوماند کړي وو. په دغه ۱۸ ټاکنیزو ډلو کې ځېنې ډلې ځواکمنې وې او کولی شوي د ټاکنو په میدان کې ښه سیالي وکړي، خو ځینې نورې ډلې بیا په خلکو کې د نفوذ او سیاسي مخینې درلودو له اړخه کمزورې ښکاریدې. په ټوله کې دغه ۱۸ ټاکنیزې ډلې په لاندې دوه برخو وېشلی شو:

لومړی: د۱۳۹۸ ه ش کال ولسمشریزو ټاکنو لپاره په ۱۸ نوماندانو کې ځینې داسې ټاکنیزې ډلې رامنځته شوې چې ځانونه یې د ولسمشرۍ حقداره ګڼل، او ولسمشرۍ ماڼۍ ته یې د رسېدو په موخه رښتینې مبارزه وکړه. په دې برخه کې د محمد اشرف غني، عبدالله عبدالله او محمد حنیف اتمر ټاکنیزې ډلې یادولی شو، دوي په ټاکنو کې د بریا په موخه کلکه مبارزه او یو د بل سیالي وکړه.

**دویم: د ۱۳۹۸ ه ش کال ولسمشریزو ټاکنو لپاره په رامخته شوو ټاکنیزو ډلو کې، ځینې داسې ډلې هم وې چې نه یې د بریا هیله لرله او نه یې هم د بریا چانس وه. دا ډول ټاکنیزې ډلې تر ډېره د شهرت او یا هم مادي او سیاسي امتیازاتو ترلاسه کولو په موخه رامنځته شوې وې.**

## په افغانستان کې د ۱۳۹۸ه. ش کال د ولسمشریزو ټاکنو ۱۸ ټاکنیزې ډلې

| گڼه | نوماند | لومړی مرستیال | دوهم مرستیال | شعار |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | محمداشرف غني | امرالله صالح | سرور دانش | دولت جوړونکې |
| ۲ | ډاکترعبدالله عبدالله | عنایت الله بابر فرهمند | سید ستار سعادتی | ثبات او همپالنه |
| ۳ | محمدحنیف اتمر | محمد یونس قانونی | محمد محقق | سوله او اعتدال د انتخاباتو څخه لاس پر سر شو |
| ۴ | گلبدین حکمتیار | فضل الهادی وزین | حفیظالرحمن نقی | سوله او اسلامی عدالت |
| ۵ | نورالحق علومي | بشیر احمد بیژن | محمد نعیم غیور | د دولت ساز په گټه له نوماندي تیر شو |
| ٦ | داکتر فرامرز تمنا | سید قیاس سعیدی | محمد امین رشادت | توسعه او تدبیر |
| ۷ | عبدالطیف پدرام | احسان الله حیدری | محمدصادق وردگ | ازادی او عدالت |
| ۸ | رحمت الله نبیل | مراد علی مراد | مسعوده جلال | امنیت او عدالت |
| ۹ | شیدا محمد ابدالي | عبدالبصیر سالنگی | ذوالفقارامید | مشارکت او تغیر د دولت ساز ته تیر شو |
| ۱۰ | زلمی رسول | غلام علی وحدت | عبدالجبار تقوا | د دولت ساز په گټه له نوماندي تیر شو |
| ۱۱ | احمد ولي مسعود | فریده مهمند | عبدالطیف نظری | ملي وفاق |
| ۱۲ | نورالرحمان لیوال | ذوالحکمت | محمد یحیی ویاړ | |
| ۱۳ | سید نورالله جلیلي | خلیل رومان | چراغ علی چراغ | |
| ۱۴ | محمدحکیم تورسن | نادرشاه احمدزی | شفیع الله قیصاری | عمل کوو شعار نه ورکووو |

| ۱۵ | محمدابراهيم الکوزی | خديجه غزنوي | سيد سامع کيانی | د دولت ساز په ګټه له نوماندي تير شو |
|---|---|---|---|---|
| ۱٦ | عنايت الله حفيظ | جنت فهيم چکري | عبدالجميل شينوار | |
| ۱۷ | غلام فاروق نجرابي | شريف الله | محمد شريف بابکرخيل | |
| ۱۸ | محمدشهاب | عبدالعلی سرابي | نورالحبيب صير | سوله،قانون او رفاء |

## ځواکمنې ټاکنيزې ډلې

په افغانستان کې تېرو ولسمشريزو ټاکنو ته په کتلو سره د ۱۳۹۸ ه ش کال ټاکنيزې سيالۍ نظر پخوا ته ګرمې او سختې وي. په ټوليز ډول په تېرو ټاکنو کې سره له دې چې د نوماندانو شمېر به زيات وو، خو ځواکمن ټيمونه به کم وو. داځل د تېر خلاف په ټاکنيزو ډلو کې د ځواکمنو ډلو شمېر زياد ښکاريده.

د محمد اشرف غني ټاکنيزه ډله: محمد اشرف غني چې د ۱۳۹۳هـ ش کال په ټاکنو کې د «تحول او تدام» ټاکنيزې ډلې مشر وو، دا ځل د امرالله صالح او محمد سرور دانش سره يو ځای د «دولت جوړونکې» ټاکنيزې ډلې په نوم د ۱۳۹۸ کال ولسمشريزو ټاکنو لپاره د سيالۍ ميدان ته را مخته شوی وه.

د افغانستان ولسمشر داسې مهال ولسمشريزو ټاکنو ته نوماند شو چې ډيری پخواني ياران او د ټيم قوي غړي يې ترې تللي وه. جنرال دوستم چې ويل کېدل په تېرو ټاکنو کې يې زياتې رايې غني ته راټولې کړې، خو دا ځل د يوه مخالف ټيم ملاتړی وه. حنيف اتمر چې د اشرف غني تر ټولو نږدې کس بلل کېده او د ملي يووالي حکومت پر مهال د غني د مخالفينو د سترګو اغزی وو، په ۱۳۹۸ ه ش کال ټاکنو کې هغه هم ورسره نه وه او په راتلونکو ولسمشريزو ټاکنو کې د غني سيالۍ ته رامخته شوی وو. له دې پرته د غني يو شمېر نور پخواني ملګري چې پخوا يې ملاتړي وو، دا مهال د ده د نورو

سيالانو ترڅنګ ولاړ ول. دا هغه څه وه چې په ولسمشريزو ټاکنو کې يې د محمد اشرف غني سيالي سخته کړې وه.

پر دې ټولو سربېره کوم څه چې د اشرف غني ډلې ته ځواک ورکړ او د بريا چانس يې زيات کړ، هغه د ده برحاله ولسمشري د حکومت په رأس کې قرار لرل او د ولس ملاتړ ووـ دغه راز د غني له لوري په مرکزي رياستي نظام ټينګار او د اجراييه رياست له منځه وړل، هم هغه د قوت ټکي وه چې د غني پلويان يې زيات کړي وه.

د عبدالله عبدالله ټاکنيزه ډله: په تېرو ولسمشريزو ټاکنو کې د «اصلاحاتو او همګرايی» ډلې مشر عبدالله عبدالله، ۱۳۹۸ کال ولسمشريزو ټاکنو ته د «ثبات او همګرايی» له شعار سره را مخته شوی وه. عبدالله هغه څوک وه چې له ۱۳۸۰هـ ش کال وروسته يې ولسمشريزو ټاکنو ته دا درېيم ځل نوماندي وه او په دې برخه کې له ښې تجربې څخه هم برخمن وو. سره له دې چې په تېرو دوو پړاونو کې يې هر ځل ښه سيالي کړې ده، خو نه دی توانېدلی چې ولسمشری مانۍ ته د افغانستان د ولسمشر په توګه دننه شي.

ولسمشريزو ټاکنو ته عبدالله عبدالله د جمعيت اسلامي، جنبش اسلامي او وحدت اسلامي ګوندونو له لوري را مخته شوی نوماند وه. د ده په ټاکنيزه ډله کې جنرال دوستم، محمد کريم خليلي ،انورالحق احدی صلاح الدين رباني قوي سياسي او قومي ملاتړ لرونکې څېرې وې.

د جنرال دوستم او کريم خليلي له ملګرتيا ورها خوا د عبدالله عبدالله د ټاکنيزې ډلې د قوت درېيم ټکی د جمعيت اسلامي په انسجام پورې اړه لرله. خو د جمعيت اسلامي ګوند غير منسجم‌والی له ولسمشر اشرف غني سره د عبدالله عبدالله سيالي سخته کړه.

د محمد حنيف اتمر ټاکنيزه ډله :ولسمشريزو ټاکنو ته د ۱۸ نوماندانو په منځ کې، ظاهراً د حنيف اتمر د ټاکنيزې ډلې جوړښت تر نورو ځواکمن ښکارېده.

**د «سولې او اعتدال» تر شعار لاندې ټاکنيزه ډله کې د اتمر لومړی مرستيال محمد يونس قانوني د جعيت اسلامي مطرح غړی وو او محمد محقق بيا د اجراييه رياست دويم مرستيال او په هزاره قوم کې ډېر نفوذ لرونکی شخص وو. همدارنگه د «سولې او اعتدال» په ډله کې عطا محمد نور، اسمعيل خان، سباوون، زاخيلوال، سيد حامد گيلاني ،نادري او ځينې نورو مطرحو سياسي څېرو هم گډون درلود چې دغه ډله يې نوره هم ځواکمنه کړې وه.**

**حنيف اتمر د ملي يووالي حکومت پر مهال هغه سياسي څېره وه چې د غني د پلويانو ترمنځ يې ډېر محبوبيت درلود، خو له غني سره د نوموړي مخالفت او له نوماندۍ وروسته دا وينا چې «که ولسمشر شو، په اساسي قانون کې به تعديل رامنځته کړي او اوسنی رياستي نظام به نيمه رياستي باندې بدل کړي»، هغه ټکي وو چې د خلکو ترمنځ په ځانگړې توگه په پښتون قوم کې يې د نوموړي محبوبيت ته زيان ورسولو .**

**سره له دې چې د حنيف اتمر په ډله کې زيات شمېر سياسي، قومي او جهادي مطرح کسان راټول ول، خو د ولسي جرگې ټاکنو ته په کتلو سره داسې ښکارېده چې ولس تر ډېره د دغو څېرو تر شا نه دی ولاړ او ډېری خلک د خپلې فردي خوښې پر بنسټ رايه ورکوي.**

**دا ټاکنيزه ډله د يو څو داخلي اختلافاتو له امله له منځه ولاړه او په رسمي توگه له انتخاباتو لاس په سر شوه.**

**د گلبدين حکمتيار ټاکنيزه ډله: د حزب اسلامي افغانستان رهبر، گلبدين حکمتيار چې په ۱۳۹٦هـ ش کال کې يې د افغان حکومت او بهرنيانو پر ضد خپله وسله‌واله مبارزه پرېښوده او سوله يې وکړه، د ۱۳۹۸ ه ش کال ولسمشريزو ټاکنو لپاره سيالۍ ته راوتلی وو. که څه هم نوموړی د ۱۳۹۳هـ ش کال په ولسمشريزو ټاکنو کې له قطب‌الدين هلال څخه ملاتړ اعلان کړ او نوموړی يې د حزب اسلامي افغانستان نوماند وباله چې هغه مهال قطب الدين هلال**

**یوازې څه کم دوه سوه زره رایې وګټلې، خو حکمتیار د افغانستان په سطحه د یوه افغان شموله اسلامپالې، جهادي او جنګي سیاسي حزب رهبر وو او لا هم د افغانانو ترمنځ زیات نفوذ لرلو، پر همدې اساس یې یوه اندازه رایې په ځانګړې توګه د اسلامپالو رایې له نورو نوماندانو څخه را کسر کړي.**

## ولسمشریزې ټاکنې

**د ۱۳۹۸ ه ش کال ولسمشریزې ټاکنې د هېواد په تاریخ کې شفافې منظمې او له امنیتي اړخه هم ښې ترسره شوې.خو په په دې ولسمشریزو ټاکنو کې یواځینی مشکل د خلکو د ګډون کموالی وه، چې علت یې د سولې پروسې خبرې، د خلکو بې باوري او د وسلوالو طالبانو لخوا د خلکو د ګډون مخنیوی وو.**

**خو بیا هم د ټولو تهدیدونو سره سره د تلې په ٦مه ولسمشریزې ټاکني په ۳۴ ولایتونو په ۵۳۷۳ محلونو کې ترسره شوې چې څه کم ۲,۵ میلیونو کسانو په کې برخه واخیسته.**

## د ټاکنو برخلیک

**د ۱۳۹۸ ه ش کال د میزان د میاشتې د ٦ مې نېټې ټاکنو لومړینی نتایج د ټاکنو د خپلواک کمیسون له لوري د ۲۰۱۹م کال د دسمبر د میاشتې په ۲۴مه نېټه په ۷ بجو او ۲۵ دقیقو اعلان شوې.**

| شماره | د نوماند نوم | رایئ | فیصدي ٪ |
|---|---|---|---|
| 1 | محمد اشرف غني | 923592 | 50.64 |
| 2 | عبدالله عبدالله | 720841 | 39.52 |
| 3 | گلبدین حکمتیار | 70241 | 3.85 |
| 4 | رحمت الله نبیل | 33919 | 1.86 |
| 5 | دکتور فرامرز تمنا | 18063 | 0.99 |
| 6 | سید نورالله جلیلی | 15519 | 0.85 |
| 7 | عبداللطیف پدرام | 12608 | 0.69 |
| 8 | عنایت الله حفیظ | 11375 | 0.62 |
| 9 | محمد حکیم تورسن | 6500 | 0.36 |
| 10 | احمد ولي مسعود | 3942 | 0.22 |
| 11 | محمد شهاب حکیمي | 3318 | 0.18 |
| 12 | دوکتور غلام فاروق نجرابی | 1608 | 0.09 |
| 13 | نور رحمان لیوال | 855 | 0.05 |

**د ۱۳۹۸ ه ش کال د میزان د میاشتې د ٦ مې نېټې جنجالي ټاکنو پایله د ۱۳۹۸ه ش کال د دلوې د میاشتې په ۲۹مه نیټه د مازدیگر په ٦ بجو د ملي راډیو تلوزیون له لاري د ټاکنو خپلواک کمیسون د غونډو په تالار کې د ټولو کمیشنرانو په حضور کې اعلان شوې، چې له مخې یې د هېواد برحاله ولسمشر محمد اشرف غني د پنځه نورو کلنو لپاره د هېواد ولسمشر وټاکل شو.**

| شماره | د نوماند نوم | رایئ | فیصدي ٪ |
|---|---|---|---|
| 1 | محمد اشرف غني | 923592 | 50.64 |
| 2 | دکتور عبدالله عبدالله | 720841 | 39.52 |
| 3 | گلبدين حکمتيار | 70241 | 3.85 |
| 4 | رحمت الله نبیل | 33919 | 1.86 |
| 5 | دکتور فرامرز تمنا | 18063 | 0.99 |
| 6 | سيد نورالله جليلی | 15519 | 0.85 |
| 7 | عبداللطيف پدرام | 12608 | 0.69 |
| 8 | عنايت الله حفيظ | 11375 | 0.62 |
| 9 | محمد حکيم تورسن | 6500 | 0.36 |
| 10 | احمد ولي مسعود | 3942 | 0.22 |
| 11 | محمد شهاب حکيمي | 3318 | 0.18 |
| 12 | دوکتور غلام فاروق نجرابی | 1608 | 0.09 |
| 13 | نور رحمان ليوال | 855 | 0.05 |

خو بيا هم ډاکتر عبدالله عبدالله د ۱۳۹۳ کال سناريو تکرار او ددرغليو تورنه يې پورې کړل او موازي حکومت يې د ټولشموله حکومت تر نامه لاندي اعلان او د حوت د مياشتې په ۱۹مه نيټه يې په سپيدار ماڼې کې، د خپلو پلويانو په حضور کې د لوړې مراسم ترسره کړل.

عبدالله عبدالله د ټولو سياسي، افغاني او اخلاقي اصولو خلاف د واليانو او کابينې د غړو په ټاکلو پيل وکړ چې دې کار د هېواد سياسي او امنيتي حالات نور هم وخيم او بحراني کړل.

دا چې یو خوا له طالبانو سره د سولې پروسه روانه وه او له بلې خوا هېواد د کرونا د اوبا له امله له سخت مالي او ټولنيز بحران سره مخامخ وو چې سیاسي بې ثباتي دا بحران نور هم پیچلي کاوه نو ولسمشر بیا ځلې د هېواد د ثبات، اتحاد او سولې لپاره ډېره لویه قرباني ورکړه او هغه له عبدالله عبدالله سره توافقنامه وه. دا توافقنامه چې د مخکېني جمهورریيس حامد کرزي، استاد عبدرب الرسول سیاف، استاد کریم خلیلي، محمدیونس قانوني، ډاکټر زلمی رسول، باتور دوستم، محمدمعصوم ستانکزي، د اقتصادي او سوداګریزو چارو د پراختیا او د بې وزلۍ کمولو په برخه کې د جمهورریيس فوق العاده استازي محمدیوسف غضنفر، د هېواد د ملي امنیت سلاکار ډاکټر حمدالله محب او د جمهوري ریاست د چارو اداري عمومي ریيس ډاکټر فضل محمود فضلي هم حضور درلود، د جمهور ریيس محمد اشرف غني او د ملي مصالحې عالي شورا د ریيس ډاکټر عبدالله عبدالله ترمنځ د ۱۳۹۹ ه ش کال د ثور د میاشتې په ۲۸مه نېټه د ارګ په دلګشاه ماڼۍ کې لاسلیک شوه.

چې له مخې یې عبدالله عبدالله ته د ملي مصالحې شورا ریاست او عبدالرشید دوستم ته د مارشالي رتبه ورکول شوه.

په افغانستان کې د ډاکټر عبدالله او ولسمشر غني ترمنځ پر شوي جوړجاړي ګاونډیو او د افغانستان متحدو هېوادنو هم غبرګونونه وښودل. د دوی ددغه اقدام ستاینه یې وکړه او هیله یې څرګنده کړه چې دغه توافق په افغانستان کې د سولې او ثبات سبب شي.[23]

---

[23]: د ۱۳۹۸ه ش کال د جمهوري ریاست ټولتیاکنې، www.iec.org.af

## دوستم ته د مارشالي ورکول د ولسمشر مجبوریت که خیانت

په هیواد کې د وخت رامنځته شوی وضعیت د بین المللي ټولنې د مرستو د کموالي، ناامنۍ، کرونا ویروس، مالي او اقتصادي بحران دسولې پروسه چې په هېواد کې یې یو بحران منځته راوړي وو، ولسمشر ددې بحران د کابو کولو لپاره د سیاسیونو، د ګاونډیو او متحدو هېوادونو د فشارونو له امله او د سیاسي کشالې د پای لپاره، له ډاکټر عبدالله سره توافقنامه لاسلیک کړه. چې توافقنامې کې ننګینه مسله دوستم ته د مارشالي رتبې ورکړه وه چې نه باید دا کار شوي وي خو ولسمشر مجبور وه او له تاریخي پلوه دا پړه پر هغه چا ده چې په ولسمشر یې هر ډول فشارونه راوستي وه چې هغه د ثبات او همپالنې ټیم، مرکچي پلاوی او عبدالله عبدالله دي.

ولسمشر تل د سولې لپاره قرباني ورکړې او لا به یې ور کوي تر څو افغان ملت له دې ناپایاداره حالات څخه ووځي او یو سوکاله او ارامه ژوند ولري، له ولسمشر څخه منندوي یو چې وخت ته په کتو یې سیاسي جوړجاړی وکړ او هېواد یې له بحران څخه وژغوره. د ولسمشر غني او ډاکټر عبدالله عبدالله سیاسي توافق د شته ستونزو او مشکلاتو ګراف راټیټ کړ چې مثبت اغېز یې نېغ پر نېغه پر ولس او هېواد وه، د هماغه وخت لپاره تر ټولو غوره پریکړه وه ملت هم د ولسمشر مجبوریتونه درک کړي وه او ددې جوړجاړي هرکلي یې وکړ.

د ولسمشر نه بیا هم ولس مننه وکړه چې د وخت، هېواد او ولس مجبوریتونو ته په کتو یې داسې پرېکړه وکړه چې اساسي قانون په کې نقض نه شو.

# پای

**د یو اباد، پرمختللي او سوله اییز افغانستان په هیله**

# اخځليکونه


- غبار،ميرغلام محمد،۱۳۹۳،افغانستان د تاريخ په بهير کې، دانش خپروندیه ټولنه،ژباړن،ارشاد،اورنگ زیب.
- باوری،عبدالله،۱۳۹٦،د افغانستان سياسي اوضاع ته لنډه کتنه،مومند خپروندیه ټولنه،ننگرهار.
- زیرکیار،ډاکتر رحمت ربی،۱۳۹۵،د ناپوهی تیاری او د پرمختگ ډیوی د افغان کلتور په چوکاټ کې له عبدالرحمن خان تر اشرف غني،کابل افغانستان،سهر مطبعه.
- عاصم، عبدالمالک، ۱۳۹۷، د انرژي سیاست او امنیت.
- نور، عبدالله، د ۲۰۱۴ کال د انتخاباتو کمیډي، علمي مقاله.
- نگاهی به سیر زندگی اشرف غنی از تحصیل تا ریاست جمهوری در افغانستان، 22Dec2019,DW
- د ازادی رادیو راپور ،۱۳۹٦ غبرگولې ۲۰.
- ارگ خپره شویه اعلامیه ۱۳۹٦ غبرگولی ۲۱.
- عثماني،علی احمد،د بریښنا وزیر،۲/۵/۲۰۱٦،خبري کنفرانس،ملي راديو تلويزون،کابل افغانستان.

- **په پژواک کې زما تحلیلی لیکنه، کال ۱۳۹۷.**
- **حزب الله اتل ،۱۳۹۸ .**
- Lbed,RECCA-V1,The Silk Riad through Afghnistan, MofA ,Afghanistan,p 42.
- https://president.gov.af/ps/news-778833(Access 6/11/2-18).
- http://www.taand.com/
- http://www.argarchive.gov.af/
- http://www.tolonews.com.tv.
- http://www.bbc.com.uk/news
- http://e-visa.mfa,ir.
- http://www.pajhwok.com./
- http://www.iec.org.af/results.com/


**یادونه:**

**ددې کتاب د ماخذونو په اړه باید ووایم، چې ددې کتاب اکثره مواد، له ټولنیزو رسنیو او دولتي چارواکو څخه په ټاکلي او همغه وخت کې د یو کار د کولو پر وخت اخیستل شوي.**



**ددی بوډا په دې ضعيف تن باندې بايد ټول افغان ولس وویاړي، دا معصومه څېره د هېوادنۍ مينې څخه ډکه ده او احساس يې د غره غوندې ډېر ټينګ دی.**

**د عزت او شرافت نور يې د ورايه ښکاري.**